# هیواد
ورځپانه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا

د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

**پنجشنبه د رمضان المبارک ۱۳مه ۱٤٤٦ق کال**، د کب ۲۳مه ۱٤۰۳ ل کال، د مارچ ۱۳ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ٥٦۷ مه، پرله پسې ګڼه ٦٥۷ مه، اتمه دوره


امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | سیزدهم |
| ایام | پنجشنبه |
| تاریخ | ۱٤۰۳/۱۲/۲۳ |
| افطار | ٦:۰۲ |
| عشاء | ۷:۲۳ |
| ختم سحری | ٤:۳۷ |
| آذان فجر | ٤:٤۲ |

## د جهادي تاریخ او ارزښتونو د ساتنې پر پیاوړتیا ټینګار وشو

د جهادي ارزښتونو لوی رئیس مولوي ذبیح الله نوراني د زندانونو چارو د سمون اداري له مرستیال محمد کاظم طارق سره لیدنه کړې. په دې لیدنه کې د جهادي ارزښتونو د خوندي کولو، مستندولو او د زندانیانو د اثارو د راټولولو پر موضوعاتو خبرې شوې دي. د ناستې په ترڅ کې ښاغلي نوراني د جهادي ارزښتونو د لوی ریاست د فعالیتونو په اړه تفصيلي معلومات ورکړي او ويلي يې دي؛ د یاد ریاست له لوري د جهادي اثارو د راټولولو، مستندولو او په ولایتونو او ولسواليو کې د جهادي کارنامو ثبتولو ته جدي پاملرنه شوې ده. د مولوي ذبیح الله نوراني په وینا: د جهادي اثارو د خوندي کولو لپاره ځانګړی...۷مخ

## فطرت:
# افغانستان یو امن هیواد دی او هېڅ خپلسري فعالیت ته اجازه نه ورکول



د اسلامي امارت مرستیال ویاند ملا حمدالله فطرت په ملګرو ملتونو کې د پاکستان د استازي او نورو لوړیو خرګندونې عقده‌مندانه وبللې او ويلي يې دي، چې افغانستان یو امن هیواد دی او هېڅ خپلسري فعالیت ته اجازه نه ورکول کېږي. نوموړي زیاته کړې: ((متاسفانه بېلابېل جهتونه په داسې ناستو کې له افغانستان سره خپلې عقدې پالي او هڅه کوي، چې ناسم انځور يې وړاندې کړي.)) ښاغلي فطرت د بل ځا له عینکو د افغانستان قضیو ته کتل په زیان ګڼلي او ويلي يې دي، چې د افغانستان په اړه د دوی څرګندونې له واقعیت څخه لرې دي. د اسلامي امارت مرستیال ویاند ملا حمدالله‌فطرت...۷مخ

## ایراني شرکتونه د افغانستان د انرژۍ پروژو کې پانګونه کوي

د اوبو او انرژۍ وزیر ملا عبداللطیف منصور د ((ایران ترانسفو)) په نوم د الماني، ایراني شرکتونو د یوې ټولګې له مسئولینو سره لیدنه کړې. په دغې لیدنه کې د یادو شرکتونو د ټولګې مسئولینو د خپلو کړنو په اړه معلومات ورانديې کړي او ويلي يې دي: لېوال دي چې په افغانستان کې د انرژۍ د تولید پروژو، د انرژۍ شبکو د پراختيا او د برېښنا شبکو د اړتیا وړ تجهیزاتو



د چمتو کولو په برخه کې پانګونه وکړي. ملا عبداللطیف منصور د نوموړو...۷مخ

## د ریشخورو د لبنیاتو فابریکې د بیا فعالولو تړون لاسلیک شو




د کرنې اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت خبر ورکړي، چې د کابل د ریشخورو د لبنیاتو فابریکې د بیافعالېدو قرارداد له یوې خصوصي کمپنۍ سره لاسلیک شو. د کرنې او مالدارۍ وزارت مرستیال صدراعظم عثماني د دې قرارداد د لاسلیک پر مهال ویلي: دغه فابریکه د مالدارانو د ملاتړ، د کاري فرصتونو رامنځته کېدو، د لبنیاتو د تولید د پراختیا او د هېواد د اقتصادي پیاوړتیا په موخه جوړه شوې. نوموړي ویلي: قراردادي شرکت به د قرارداد مطابق له کابل، لوګر، میدان وردګو او نورو ولایتونو څخه شیدې راټولوي او پروسس کوي، څو افغانستان د لبنیاتو برخه کې ځان بسیاینې ته ورسېږي. د میلکو قراردادي شرکت مسئولینو ویلي: دې برخه کې به پانګونه نوره هم زیاته کړي او راتلونکي...۷مخ

## د پنجشېر د کانونو او پټرولیم ریاست:
# سږکال ۵۱۸۸۲.۳ قیراطه زمرد پلورل شوي

د پنجشېر ولایت د کانونو او پټرولیم رئیس محمد قاسم امیري ویلي دي چې د کال له پیله تر اوسه پورې د پنجشېر ۵۱۸۸۲.۳



قیراطه زمرد د ۲٦۹٦۳۰۰ ډالرو په ارزښت پلورل شوي دي چې د هېواد لپاره يې ځانګړي نوم خپل کړي دي. د نوموړي په وینا: را ایستل شوي زمرد په کور دننه پر کورنیو سوداګرو باندې د ازادې داوطلبۍ له لارې پلورل شوي دي چې د سوداګریزو اعلاناتو، واټساپ ګروپونو، راډیو، تلویزیون او نورو خواله رسنیو له لارې ورته بازار موندنه شوې ده او د خپل نایابه ارزښت له امله يې په نړۍ کې ځان ته ځای پیدا کړی دي. نوموړي همداشان ویلي دي چې...۷مخ

هېواد ورځپاڼې خبریال سره مرکه

## خوست کې د یوې پروژې چارې پیل شوې

د خوست ولایت ځايي چارواکي وايي، چې د دغه ولایت د صبري ولسوالۍ په مکتب بازار سیمه کې د څه باندې یو میلیون افغانیو په لګښت د یوې پروژې چارې پیل شوې دي.
د خوست ولایت د مقام ویاند مستغفر ګربز باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي چې یاده پروژه له پېښو سره د مبارزې او چمتووالي ملي ادارې په مالي ملاتړ د ۱.۳ میلیونه افغانیو په لګښت پلې کېږي، چې په کې...۷مخ

## د کندهار د پولیسو ښوونیز مرکز څخه ٤٨٦ سرتېري فارغ شول

د کندهار ولایت امنیتي مسئولین وايي، چې د کندهار د پولیسو له ښوونیز او روزنیز مرکز څخه ٤٨٦ تنه سرتېري فارغ شوي دي. د کندهار د امنیي قوماندانۍ ویاند ملا اسدالله جمشید باختر اطلاعاتي آژانس ته وویل چې دغه سرتېري له دوو میاشتو عقیدتي او مسلکي زده کړو وروسته د یو لړ مراسمو په ترڅ کې فارغ شوي دي. فارغو شویو پولیسو ژمنه ورکړې، چې دوی د نظام د ساتنې او د ولس د امنیت د ټینګښت لپاره هر ډول قرباني او سربښندنې ته چمتو دي.

## لغمان کې پر ۲۵۰ هکتاره ځمکه د زیتونو باغونه جوړېږي

د لغمان ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وايي چې د دې ولایت په مرکز مهترلام، قرغيو او الیشنګ ولسوالیو کې پر ۲۵۰ هکتاره ځمکه د زیتونو باغونه جوړېږي، چې ۲۵ زره د زیتونو نیالګي به په کې کښېنول شي. د یاد ریاست د نشراتو مسئول سردار زیار وايي، چې دغه باغونه د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست تر چتر لاندې د لغمان ولایت د ژوند چاپیریال ساتنې ریاست سره په همغږۍ د خوراک او کرنې نړیوال سازمان د ((جیف سیون)) پروژې د ۷۵ زره امریکایي ډالرو په مالي لګښت جوړېږي، چې له سلو زیاتو بې روز ګارو اشخاصو ته به پکې د کار زمینه برابره شي. د یاد ریاست مسئولین زیاتوي، چې دغو باغونو ته د نیالګیو د وېش لړۍ پیل شوې او ډېر ژر به یې د کینولو لړۍ هم پیل شي. دا په داسې حال کې ده، چې له دې وړاندې هم د یاد ریاست له لوري په لغمان کې پر ۱۵ جریبه



ځمکه د مالټو باغونه جوړ شوي دي.

## غور کې مخابراتي اسانتیاوې زیاتې شوې

د غور ولایت د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ریاست مسئولینو خبر ورکړی چې په دې ولایت کې اوس مهال ۵۸ مخابراتي سایټونه فعال او انټرنېټي خدمات وړاندې کوي.
د غور د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ رئیس مولوي محمد یوسف راهنما باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې تر دې دمه، په غور ولایت کې د بېلابېلو شبکو ۵۸ مخابراتي سایټونه د دغه ولایت خلکو ته انټرنېټي او مخابراتي خدمات وړاندې کوي. نوموړي زیاته کړه، چې راتلونکي کال کې به د غور ولایت په لرې پرتو سیمو کې د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت په همغږۍ د ۳۵ نویو سایټونو د فعالېدو چارې پیل شي. نوموړي زیاته کړه چې د دې سایټونو د جوړولو



موخه د غور په لرې پرتو سیمو کې د ...۷مخ

## د فراه خاکسفید ولسوالۍ کې روغتیايي مرکز جوړ شو

د فراه ولایت ځايي مسئولین وايي چې د دې ولایت د خاکسفید ولسوالۍ په اسلام اباد کلي کې د څه باندې یو میلیون افغانۍ په لګښت یو روغتیایي مرکز جوړ او ګټې اخیستنې ته سپارل شوی دي. سرچینې باختر اژانس ته ویلي چې یاد روغتیایي مرکز د قابله ګۍ، لابراتوار،



درملتون، غابونو، کتنځي او د سراپا ناروغانو بستر خونې او ځانګې لري، چې د ځايي اوسېدونکو ګڼې ستونزې به حل کړي. د سیمې اوسېدونکو د یاد روغتیایي مرکز په جوړېدو خوښي څرګنده کړې او له ځايي مسئولینو یې د ورته نورو پروژو د پلي کولو غوښتنه کړې.

## د ټولنیزو شبکو ګټې او زیانونه



٤مخ

## د راتلونکي نسل په سالمه روزنه کې د مدرسو او ښوونځیو رول!




۲مخ

## د اخلاقي فساد لاملونه، پایلې او د مخنیوي لپاره یې اسلامي اصول




۳مخ




# د راتلونکي نسل په سالمه روزنه کې د مدرسو او ښوونځیو رول!

په هره ټولنه کې د راتلونکي نسل سالمه روزنه د هغه ملت د بقا، پرمختګ او سوکالۍ لپاره حیاتي اهمیت لري. د یو ولس راتلونکې د هغوی پر ځوانانو ولاړه وي او که دغه قشر په سمه توګه وروزل شي، نو یوه روښانه او له جرمونو پاکه ټولنه رامنځته کېدای شي. له همدې امله، دیني مدارس او ښوونځي باید د نوي نسل تعلیم او تربیې ته ځانګړې پاملرنه وکړي، ځکه چې د دوی مسئولیت یوازې تدریس نه دی، بلکې د ماشومانو او ځوانانو اخلاقي، فکري او ټولنیزه روزنه هم ده.

تعلیم د انسان د ذهن جوړښت ته وده ورکوي، خو تربیه د هغه شخصي، اخلاقي او ټولنیز ارزښتونه ټاکي. که یوازې تعلیم ته توجه وشي، خو تربیه شاته پاتې شي، نو ټولنه به له داسې اشخاصو ډکه شي چې علم لري، خو د ټولنې د سمون لپاره هیڅ مسئولیت نه احساسوي. برعکس، که تربیه موجوده وي، خو تعلیم ته پاملرنه ونشي، نو د ټولنې پرمختګ به له ستونزو سره مخ شي. نو ځکه، د یوه متوازن، سالم او با اخلاقه نسل روزنه یوازې تعلیم او تربیې ته د ګډې پاملرنې له لارې شونې ده.

د دیني مدارسو رول باید یوازې د دیني علومو تدریس ته محدود نشي، بلکې د زده‌کوونکو د فکري، اخلاقي، سیاسي او ټولنیز شعور د لوړولو لپاره هم باید ځانګړي پروګرامونه طرحه شي. دیني مدارس باید هڅه وکړي چې د خپلو شاګردانو لپاره د ژوند مهارتونه، مدني زده‌کړې، ویناوالي، تجارت او تخنیکي مهارتونه هم تدریس کړي، ترڅو هغوی وکولای شي د ټولنې په رغونه کې فعال رول ولوبوي.

بله خوا، د عصري ښوونځیو مسئولیت دا دی چې زده‌کوونکو ته یوازې د کتابي معلوماتو ورکولو پرځای، هغوی ته اخلاقي، ټولنیز او دیني ارزښتونه هم ورزده کړي. که چېرې ښوونځي یوازې د ساینسي، ریاضي او نورو مضمونونو تدریس ته توجه وکړي، خو د زده‌کوونکو شخصیت‌سازۍ ته پاملرنه ونشي، نو ټولنه به له سواد لرونکو، خو بې‌مسئولیته او بې فکره کسانو ډکه شي.

د دې لپاره چې نوی نسل له سالمې روزنې څخه برخمن شي، ښوونځي او دیني مدارس باید یو له بل سره همغږي ولري.

د مدرسو فارغان باید د عصري علومو له زده‌کړو برخمن شي او د ښوونځیو فارغان باید د دیني پوهاوي له برکته خپل اخلاقي، ټولنیز او معنوي ارزښتونه وساتي.

که موږ غواړو چې راتلونکی نسل له جرمونو، فساد، بې مسئولیته ژوند او اخلاقي انحراف څخه وژغورو، نو باید د ښوونځیو او دیني مدارسو نصاب ته جدي پاملرنه وکړو...

۶مخ

# د اسلامي نړۍ ځوان نسل ته سیاسي شعور ورکول

ځواک یوسفزی

د اسلامي نړۍ ځوان نسل ته سیاسي شعور ورکول داسې هڅه ده لکه هغو ماشومانو ته د خپل راتلونکي نقشه ورکول چې هغوی لا په دې نه پوهېږي چې کومه لاره سمه او کومه غلطه ده. ځوانان، چې اکثره یې د ټیکنالوژۍ او سوشل میډیا نړۍ کې ډوب دي، داسې فکر کوي چې سیاسي شعور یوازې ایکس کې د یوه ټویټونو یا انسټګرام څو ویډیوګانو د لیدو یا پر فیسبوک د څو پوسټونو له لارې ترلاسه کېږي.

هغوی به کله چې په سیاسي خبرو اترو کې برخه اخلي، داسې ښکاري چې ټولې ستونزې په یوه څو کرښو کې حل کېدای شي.

خو، حقیقت دا دی چې سیاسي شعور یوازې د څو څرګندونو نه دی، بلکې د ملت د تاریخ، د دې نړۍ د جغرافیا، د اقتصادي او ټولنیزو حالاتو او د اسلام د ژورو اصولو په اړه پوهه غواړي. د سیاسي شعور پرمختګ، د سیاست د حقیقتونو او پیچلتیاوو د پوهې لپاره ژور فکر او پراخه مطالعه غواړي. ځوانان باید پوه شي چې سیاست د هر ملت د راتلونکي جوړولو په اړه یو بنسټیز فعالیت دی او د هغوی هره پرېکړه نه یوازې پر دوی بلکې پر ټولنې او حتی د اسلامي نړۍ پر راتلونکي اغېزه لري.

د سیاسي شعور ورکولو په لاره کې ځوانان باید له دې پوهې سره آشنا شي چې سیاست یوازې د یوه دولت یا حکومت پورې نه دی محدود، بلکې د هر فرد د فعالیت برخه ده. دا پوهه کولی شي هغوی ته مرسته وکړي تر څو نه یوازې د خپلو حقونو په اړه پوهه پیدا کړي، بلکې د خپلو مسئولیتونو په اړه هم فکر وکړي. په دې توګه، د اسلامي نړۍ ځوانان کولی شي د خپلو ټولنیزو، اقتصادي او کلتوري چارو د سمون لپاره ښې او له پامه غورې پرېکړې وکړي، ترڅو دوی د خپل ملت د پرمختګ او اسلامي ارزښتونو د خوندي کولو لپاره یو ښه مسئولیت واخلي.

دا چې اسلامي امت د بېلا بېلو ستونزو، داخلي اختلافاتو، د کفري قوتونو دسیسو او فکري یرغلونو له امله د خپل اصلي او اصل مسیر څخه لرې شوی او د دې وضعیت اصلي لامل د سیاسي شعور کمښت او د لوېدیځ فرهنګي، تعلیمي او رسنیزو جګړو اغېزې دي، ځکه که ځوان نسل د اسلام د سیاسي اصولو پر بنسټ وروزل شي، نو نه یوازې به د اسلامي امت ستونزې حل شي، بلکې اسلامي امت به یو ځل بیا خپل له لاسه وتلې عزت، قوت او خپلواکي ترلاسه کړي، ځکه اسلام یوازې د عباداتو دین نه دی، بلکې دا یو بشپړ نظام دی، چې د ژوند ټول اړخونه تنظیموي، په شمول د سیاست او رسول الله ﷺ د سیاسي مبارزې، د اسلامي نظام، د خلفای راشدینو حکمراني او د اسلامي تمدن زرینه دوره دا ښیي چې اسلام د عدالت، قوت او نظم یو بې‌ساری نظام لري، خو دا نظام هغه وخت په بشپړ ډول نافذېدای شي، چې ځوانان یې د درک، شعور او عملي کولو لپاره چمتو شي او د دې لپاره لومړی باید د اسلامي امت د حالاتو درک وکړي، د کفري قوتونو دسیسې شنډې کړي، د اسلامي امت د مشرتابه د روزنې لپاره چمتو شي، د اسلامي نظام د پیاوړتیا لپاره کار وکړي او د مسلمانانو د اقتصادي، تعلیمي او نظامي ځواکمنتیا اړتیا درک کړي او دا یوازې هغه مهال ممکنه ده، چې ځوانان د سیرت النبي ﷺ زده کړه وکړي، د خلفای راشدینو نظام درک کړي، د اسلامي فقهې مطالعه وکړي، د کفري قوتونو د سیاسي چلن شننه وکړي، د اسلامي اقتصادي نظام معرفي کړي، د اسلامي امت د یووالي اهمیت درک کړي، د اسلامي رسنیو او تعلیم ارزښت وپېژني او د اسلامي جهاد د مفهوم وضاحت ترلاسه کړي، ځکه چې رسول الله ﷺ د مکې له ظلم څخه مدینې ته هجرت وکړ، هلته یې اسلامي دولت جوړ کړ، سیاسي معاهدې یې وکړې، د کفري قوتونو دسیسې یې شنډې کړې، نظامي ځواک یې تنظیم کړ او اسلامي قانون یې نافذ کړ او دا ټولو ته درس ورکوي، چې که ځوانان د لوېدیځ سیاسي نظام، د هغوی منافقت، دوه مخي سیاستونه، استخباراتي جګړې، اقتصادي استعمار، فرهنګي یرغل، نظامي مداخله او د اسلامي هېوادونو د ویجاړولو لپاره د دوی ستراتیژۍ درک کړي، نو د اسلامي امت لپاره به یو ځل بیا قوي سیاسي نظام رامنځته شي او د کفري او سیکولر نظامونو پر وړاندې به اسلامي شعور پیاوړی شي، ځکه لوېدیځ، د سود، ربا، احتکار او استثمار پر بنسټ ولاړ نظامونه رامنځته کړي، چې مسلمانان یې د فقر، غربت او اقتصادي غلامۍ سره مخ کړي، نو که ځوانان اسلامي اقتصادي نظام، د بیت المال اصول، د زکات، صدقې، وقف، اسلامي بانکدارۍ، تجارت، زراعتي او صنعتي سیاستونه زده کړي، نو اقتصادي ازادي به ترلاسه کړي او دا یوازې د اسلامي سیاست د اصولو په درک کولو سره ممکنه ده، ځکه چې د لوېدیځ هدف دا دی، چې اسلامي امت ټوټه ټوټه کړي، د قومیت، ژبې، سمتي اختلافاتو او فرقه‌یي تعصب له لارې د مسلمانانو ترمنځ اختلافات پیدا کړي، نو ځوانان باید درک کړي، چې مسلمانان یوازې د «لا إله إلا الله» پر بنسټ متحد کېدای شي، نه د قومي، سمتي یا سیاسي ګټو پر بنسټ، ځکه لوېدیځ د جهاد مفهوم تحریف کړی، ترڅو مسلمانان د خپل دین له دفاع څخه وباسي، نو ځوانان باید د جهاد اصلي مفهوم، مشروعیت، حکمت، شرایط او د هغه عملي اړخونه درک کړي، ترڅو د لوېدیځ د پروپاګند ښکار نشي او که د اسلامي نړۍ ځوان نسل سیاسي شعور ترلاسه کړي، نو اسلامي امت به یو ځل بیا د خپلواکۍ، قوت، عدالت، اقتصاد، علم او عزت پر لاره ولاړ شي، نو ځوانان باید د اسلامي سیاست اصول زده کړي، د دښمن دسیسې وپېژني، د اسلامي نظام مفاهیم درک کړي او د اسلامي امت د عزت لپاره مبارزه وکړي او دا یوازې یوه فکري او سیاسي اړتیا نه ده، بلکې دا د هر مسلمان دنده ده، ترڅو د اسلام خدمت وکړي، د امت د وحدت لپاره کار وکړي او د کفري قوتونو پر وړاندې د اسلامي سیاست دفاع وکړي، او الله تعالی دې اسلامي ځوانانو ته بصیرت، پوهه، قوت او د اسلام د حاکمیت لپاره جرئت ورکړي، ترڅو د...

۷مخ




شیخ احمد طیب :

# دامن زدن به اختلاف شیعه و سنی ، پروژه خطرناک و مرگبار دشمن دیرینه اسلام است

روان

شیخ احمد الطیب ، شیخ بزرگ الاظهر وضعیت فعلی جهان اسلام را خطرناک خواند و افزود دراین شرایط حساس تلاش برای وحدت جهان اسلام ، نسخه علاج بسیاری ازمشکلات ممالک اسلامی است. پس صدای وحدت و مهربانی را بلند تر کنید .

شیخ الازهر گفت: ناسزاگویی و یکدیگر را به لقب بد خواندن، باعث شده است تا مردم یک ملت واحد ردشمن شوند و دامن زدن به فتنه بین شیعه و سنی، فتیله‌ای سریع‌الانفجار و با تاثیرگذاری قوی است.

به گزارش شفقنا، الشروق نوشت: شیخ احمد الطیب در سخنان رمضانی خود بر لزوم حاکم شدن ادب و احترام میان مذاهب اسلامی و میان صاحبان دیدگاه‌های مختلف تأکید کرد و گفت:« وقتی ادب اختلاف را از دست دادیم، راه را نیز از دست داده ایم.»

او تشریح کرد: این اصل، همان موضوعی است که در کنفرانس گفت‌وگوی اسلامی-اسلامی مورد توافق قرار گرفته است.

خطر ناسزاگویی و فتنه‌افروزی بین مذاهب

شیخ الأزهر که در سومین قسمت از برنامه رمضانی خود با عنوان «الإمام الطیب سخن می گفت، تأکید کرد که نخستین اقدام، توقف ناسزاگویی میان مذاهب است، زیرا این امر باعث شده که مردم یک ملت به دشمن تبدیل شوند.

وی هشدار داد که دامن زدن به فتنه میان شیعه و سنی، فتیله‌ای است که به‌سرعت منفجر شده و تأثیری ویرانگر دارد، و این همان چیزی است که دشمن می‌خواهد و با تمام توان بر آن اصرار دارد، زیرا بر اساس اصل «تفرقه بینداز و حکومت کن» عمل می کند.

او تصریح کرد که اختلاف مذهبی، اگر از چارچوب شرعی خود -که اختلاف در اندیشه است- خارج شود، پیامدهای خطرناکی خواهد داشت.

عوامل وحدت امت اسلامی

شیخ الأزهر تأکید کرد که امت اسلامی دارای عوامل بسیاری برای وحدت وجود دارد که عوامل جغرافیایی از ان جمله است و ملت‌های عربی در یک منطقه جغرافیایی قرار دارند و زبان واحدی آن‌ها را به هم پیوند می‌دهد.

وی با اشاره به اینکه دومین عامل وحدت اشتراکات دینی است، افزود: مسلمانان با جمعیتی بیش از یک و نیم میلیارد نفر، دارای عقیده‌ای واحد هستند. همگی یک خدا را می‌پرستند، به سوی یک قبله نماز می گزارند و یک قرآن دارند که هیچ اختلافی در آن نیست.

شیخ الازهر ادامه داد: بزرگ‌ترین عامل وحدت مسلمانان، تعالیم و دستورات دینی است، از جمله حدیث پیامبر اکرم (ص) که می‌فرمایند:«هر کس که نماز ما را بخواند، رو به قبله ما بایستد و از ذبیحه ما بخورد، او مسلمانی است که در پناه خدا و پیامبرش قرار دارد؛ پس مبادا پیمان الهی را بشکنید.»




چرا دشمنان مخالف وحدت مسلمانان هستند؟

شیخ الأزهر با طرح این سوال که چرا دشمنان مخالف وحدت مسلمانان هستند؟ تأکید کرد: دشمنان مسلمانان هیچ‌گاه نمی‌خواهند که مسلمانان متحد شوند، زیرا آن‌ها به این باور رسیده‌اند که اگر مسلمانان متحد شوند، به یک قدرت بزرگ تبدیل خواهند شد.

وی تشریح کرد که این دشمنان با تمام حیله و مکر خود تلاش می‌کنند تا مسلمانان را مانند فردی در حال غرق شدن نگه دارند. هرگاه در حال خفگی هستند، کمی آن‌ها را بالا می‌کشند تا نفس بگیرند، سپس دوباره آن‌ها را فرو می‌برند، و این روند را ادامه می‌دهند.

او تأکید کرد که تنها راه خروج از این وضعیت، تحقق وحدت است؛ به این معنا که در برابر مسائل مهم و سرنوشت‌ساز، موضعی یکپارچه داشته باشیم.

نقش الأزهر در گفت‌وگوی اسلامی – اسلامی

شیخ احمد الطیب در ادامه سخنانش با اشاره به نقش الازهر در گفت و گوی اسلامی- اسلامی بیان کرد: الأزهر از مدت‌ها پیش نقش مهمی در گفت‌وگوی اسلامی میان مذاهب، به‌ویژه با علمای شیعه داشته است.

وی خاطرنشان کرد: ایده تأسیس «دار التقریب» در الأزهر شکل گرفت و با همکاری شیخ محمود شلتوت و مرجع دینی بزرگ، آیت‌الله محمدتقی قمی، در سال ۱۹۴۹ پایه‌گذاری شد. این مرکز تا سال ۱۹۵۷ فعال بود و ۹ جلد کتاب منتشر کرد که بیش از ۴۰۰۰ صفحه را در بر می گرفت.

شیخ الأزهر در پایان تأکید کرد که تلاش‌هایی برای احیای دوباره این روند در فضایی سرشار از صداقت و برادری انجام خواهد شد.

هیواد



# د اخلاقي فساد لاملونه، پایلې او د مخنیوي لپاره یې اسلامي اصول

محمد قاسم عزام

معاصره ټولنه له بېلا بېلو اخلاقي ننګونو سره مخ ده، چې د ارزښتونو زوال، بې‌بندوباري او مادي افکار یې مهم عوامل دي. د دې بحران اصلي اسباب درې دي: ماتریالیزم، فیشن او ناوړه رسنۍ:

ماتریالیزم د اخلاقي فساد یو ستر لامل دی. کله چې ټولنه د مادیاتو په لور متمرکزه شي، معنوي ارزښتونه له پامه غورځول کېږي. د اسلام پیغام دا دی چې دنیا د انسان لپاره وسیله ده، نه هدف،خو معاصر مادیات محور فکر، چې د سودي اقتصاد او مصرفي بازار له لارې پیاوړی شوی، انسان د دنیوي خواهشاتو غلام کړی دی. خلک د هرې وسیلې له لارې د پیسو ګټلو هڅه کوي، که حلال وي که حرام. له همدې امله، درغلۍ، خیانت، رشوت او ظلم رواج موندلی.

فیشن د اخلاقي بې‌لارېتوب بل لامل دی. د لوېدیځ کلتور د سینما، موسیقۍ او ټولنیزو شبکو له لارې د داسې فیشن ترویج کړی چې اسلامي حیا، ساده ژوند او عفت ته زیان رسوي. فیشن یوازې د لباس په بدلون نه محدودېږي، بلکې د فکر، طرز ژوند او ټولنیزو اړیکو بڼه هم بدلوي. د بې‌بندوبارۍ فرهنګ، چې د فیشن تر نامه لاندې وړاندې کېږي، د اسلامي ټولنې ارزښتونه له منځه وړي، له حلال او حرامو سره د خلکو حساسیت کموي.

ناوړه رسنۍ د اخلاقي فساد خپرولو لپاره له ټولو قوي وسیله ده. هغه رسنۍ چې د فحشا، تشدد او غیر اسلامي افکارو تبلیغ کوي، د ټولنې د اخلاقو د کمزورۍ سبب ګرځي. د ټولنیزو شبکو، فلمونو او ډرامو له لارې داسې مفکورې عامې شوې چې اخلاقي اصول تر پوښتنې لاندې راولي. دا رسنۍ د ټولنې د فکري استعمار وسیله ده، چې د اسلامي امارت له راتګ سره یې د کنټرول لپاره جدي اقدامات شوي، خو لا هم اړتیا ده چې اسلامي بدیلونه پیاوړي شي.دا درې عوامل د اخلاقي بحران اساسي لاملونه دي. اسلامي امارت د شرعي اصولو پر بنسټ د اخلاقي ارزښتونو د ساتلو لپاره اقدامات کړي، خو د ټولنې د هر فرد مسؤلیت دی چې د دې فساد سرچینې وپېژني او د اسلامي اخلاقو د احیا لپاره عملي ګامونه واخلي.

د اسلامي اخلاقو نظام:

اسلامي اخلاق د ټولنیز عدالت، عزت او سوکالۍ بنسټ جوړوي. دا نظام پر هغه اصولو ولاړ دی چې د انسان شخصیت ته وقار ورکوي او د ټولنې هر فرد ته د خپل مسؤلیت احساس القا کوي. مهم عناصر یې صداقت، امانت، حیاء او تواضع دي، چې د فردي او ټولنیز ژوند بنسټیز اصول ګڼل کېږي. صداقت د اسلامي اخلاقو اساسي رکن دی. اسلام پر دې ټینګار کوي چې انسان باید د هر ډول دروغو، منافقت او دوکې څخه ځان وساتي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "صداقت نېکۍ ته لارښوونه کوي او نېکي دې جنت ته بیایي." که ټولنه پر صداقت ولاړه وي، اقتصادي راکړه ورکړه، د عدلي نظام شفافیت او سیاسي ثبات را منځته کېږي. امانت د فردي او ټولنیزو اړیکو د باور اساس دی. هر مسئولیت، که دا د حکومتي چارواکي، قاضي، سوداګر، یا عام وګړي وي، د امانت حیثیت لري. کله چې امانت ضایع شي، ټولنه له فساد، بې‌عدالتیو او ظلم سره مخ کېږي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "کله چې امانت ضایع شي، د قیامت انتظار وباسئ."حیاء د اسلامي ټولنې ځانګړتیا ده. دا یوازې د لباس پورې محدود نه ده، بلکې د ګفتار، سلوک او ټولنیزو تعاملاتو برخه هم ده. حیاء د ټولنیزو اړیکو د سپېڅلتیا ضمانت ورکوي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "حیاء د ایمان یوه برخه ده." که حیاء ضعیفه شي، فحشاء، بې‌بندوباري او اخلاقي فساد زیاتېږي. تواضع د اسلامي اخلاقو یوه مهمه برخه ده. یو مسلمان باید له تکبر، ځان‌ستاینې او نورو ته د کمترۍ نظر څخه ځان وساتي. د تواضع نشتوالی د ټولنیزو شخړو، سیاسي انحرافاتو او کورنیو اختلافاتو سبب ګرځي. قرآن کریم مؤمنانو ته امر کوي: "خپله وزر (تواضع) مؤمنانو ته ښکته کړه."

د اسلامي اخلاقو دا نظام که په فردي، کورني او ټولنیز ژوند کې پلی شي، نو ټولنه به له اخلاقي بحران څخه وژغورل شي. اسلامي امارت د شریعت د حاکمیت له لارې د دې ارزښتونو د پیاوړتیا هڅه کوي، خو د هر فرد مسؤلیت دی چې په خپل کردار کې یې عملي کړي.

د اخلاقي روزنې لپاره د کورنۍ، ښوونځي او ټولنې رول:

کله چې اسلامي اخلاق د فرد د ژوند برخه شي، نو...۶مخ

# نوی کال او نوې هیلې

سالمزی

طبیعت پر کائناتو د رنګونو څادر و غوړاوه، ځمکې هم شین لباس واغوست او په سرکې یې رنګارنګ ایښودل شوي نیالګي هم شنه شول، ګلان وغوړېدل، بلبلان باغونو ته راغلل او پر ترانو یې پیل وکړ، سیندونو کې هم چټکتیا راغله او چینې راوخوټېدې، وینه په حرکت راغله، انسانانو هم پرمختګ وکړ او د خپل علم او پوهې پرمټ یې د سپوږمۍ پر خېټه خپل قدمونه کېښودل او نور هم په دې هڅه کې دي،چې پرمختګ وکړي او لا مخ ته ولاړ شي. آخر موږ هم انسانان یو او د نړۍ په دې خاورینه کره کې ژوند کوو. پکار ده چې موږ هم د خپل انساني عقل او خواهش په اساس د دنیا د نورو قومونو او ملتونو په څېر ژوند او پرمختګ وکړو، د نړۍ له پرمختللي کاروان سره د سیالۍ جوګه شو او پر دې غور وکړو چې ولې او په کومه وجه له دغه کاروانه شاته پاتې یو؟ راځئ په خپلو کې سره یو موټی شو، د خپل ګران او محبوب هېواد او ځورېدلي ملت د نجات او ژغورنې په خاطر یو بل ته لاسونه ورکړو، د خپل هېواد، د پرمختګ لپاره نه ستړي کېدونکې هڅې پیل کړو، سر له نن څخه دا هوډ وکړو چې د پردیو له نیابتي او استخباراتي جنګونو څخه ځانونه وژغورو، د خپل هېواد د غوړېدو او سمسورتیا لپاره متې راونغاړو او د نوي کال له پیلېدو سره سم نوی فکر، نوی پرمختګ او نوي پلانونه جوړ کړو، د خپل اسلامي نظام تر چتر لاندې د مصئونیت ، ډاډ من امنیت او اسلامي عدالت په رڼا کې خپلمنځي ستونزې هوارې او د یو موټي ملت په توګه نړیوالو ته خپل یووالی او قوت څرګند کړو چې په دې ډول وکړای شو له بهرنیو لاسوهنو او مداخلو څخه خپل ګران هېواد او ملت ته نجات ورکړو، د پوهې او علم په ډګر کې د خپل ځوان او راتلونکي نسل د ښې روزنې په موخه پر ښوونیزو بنسټونو کار وکړو او دغه ویاړلې کارنامه په خپل نامه ثبت کړو او د لوستو ځوانانو په مخکې شته ستونزې له منځه یوسو، ترڅو مو ځوانان پر مرګونو او قاچاقي لارو بهرنیو هیوادونو ته ولاړ نشي، د هغوی له فزیکي قوت او استعداد څخه باید د خپل هېواد په پرمختګ او سمسورتیا کې ګټه پورته کړو او په دغې برخه کې داسې پرمختګ وکړو چې له نورو هېوادونو څخه ځوانان دلته راشي او ګټه ترې واخلو، خو دا تش په خوله نه کېږي ،بلکې عمل غواړي. لکه چې ما په خپل یو شعر کې ویلي:

په تشه وینا نه کېږي عمل غواړي ملګرو
دا ستونزې مشکلات هم ګورئ حل غواړي ملګرو
د لاس یوه یوه ګوته ماشوم هم ماتوی شي
حالات رانه قوي غوندې منګول غواړي ملګرو
ترڅو به د ړندو په څېر د نورو پر اوږو ځو
پخپله نورې سترګې غړول غواړي ملګرو

موږ ته پکار دي چې خپلې وینا ته د عمل جامه ور واغوندو او پر هغو لارو چارو غور وکړو چې موږ د پردیو له احتیاجه خلاص او پر خپل ځان بسیا شو. راځئ د نوي کال له پیلېدو سره سم د هېواد د غوړېدو او د هوا د ککړتیا د مخنیوي په موخه یو بوټی نهال کړو او د نهالشانۍ دغه جشن په یووالي، خوښۍ او شاندارو مراسمو سره ولمانځو.

د یوه ودان، سرلوړي او پرمختللي افغانستان د جوړېدو په هیله



کارتون هفته

# د انسان په وجود کې تعصب او حساسیت له زیږون وروسته پیدا کېږي

حیات الله حلیم

تعصب او حساسیت د انسان په وجود کې دوې هغه منفي پدیدې دي چې د مشاهداتو او په غوږونو د ناخوښو خبرو د اورېدو له لارې پیدا کېږي او دواړه یې د انسان ژوند له ستونزو سره مخ کوي د تعصب موجوداتو پر وړاندې تعصب، حساسیت، حسادت، کرکه، کینه او نفرت د پورتنیو خواصو درلودونکی انسان په وجود کې د کومو عواملو زېږنده دي؟ یوازې دا یوه معقوله ترې عامه او رسنیزه شوې چې وایي : هغه اوصفا وي په هېڅ نه پوهېږي احساسات یې تنکي او ډېر سالم وي کینه ، کرکه ، نفرت او عصبیت نه پېژني آن تردې چې خپل ځان هم نه پېژني ، یوازې د لوږې اویا کوم احتمالي درد په صورت کې خپلو احساساتو ته چې سترګې یې یوځه وغړېږي نو لومړی خپله مور پېژني ، په هغه پسې ګوري او ژاړي ، وروسته د خپلې کورنۍ غړي یو پر بل پسې پېژني چاته خاندي او له چا کرکه کوي یا د خپلې مور له غېږې په آسانۍ بل کس ته نه ورځي ځکه دا وخت یې د کورنۍ د غړو ترمنځ ګران او ناګران هم تریوه بریده تشخیص کړي وي، چې پرې ګران وي هغه ته په اوکړو او خپوړو ورځي چې حساسیت ورسره لري هغه ته نه ورځي اوکه احیانا په زوریې واخلي نولاس یې په هوا او سریې د هغه له مخه کوږ نیولی وي، ژاړي، چې له دغه عملکرد څخه یې په وجود کې د حساسیت لومړنۍ نښې نښانې را څرګندېږي کله یې چې د پېژندلو او تشخیص توان یو څه نور هم قوي شي نو د ځینو چاپېریالي شیانو سره بلدتیا پیدا کوي یوشی د خور، وررور له لاسه په زور اخلي لج کوي او ژاړي چې دا یې په وجود کې له ماحولي اجسامو سره د بلدتیا لومړی علامه ګڼل کېږي. مور اولاد ته له ټولو...۶مخ




په اړه د انسانانو په خواصو زیاتې څېړنې او پلټنې شوې خو څېړونکي په کره ډول دې فایلې ته نه دي رسېدلي چې د نورو انسانانو، حیواناتو او کس چې حسد کوي له طبیعي مرګه وړاندې د کینې، کرکې او نفرت په مرګ مړ کېږي. انسان چې له موره وزیږېږي د مزاج په ارتباط ډېرپاک په ژړا او فریاد تبارز ورکوي ، خپل مور او پلار هم نه پېژني، د تشخیص پر بناء خپلې سترګې مشخص ځای ته هم نشي نیولای له دوو درېیو میاشتو وروسته

# د ټولنیزو شبکو ګټې او زیانونه

احمد خان زیار

ټولنیزې شبکې چې نن سبا یې اړیکې ډېرې پراخې کړې، انسانان یې ډېر سره نږدې کړي او د خلکو لپاره یې په مختلفو برخو کې اسانتیاوې رامنځته کړې دي،خو ترڅنګ یې ډېر داسې ښکاره او پټ زیانونه هم لري چې نن سبا یې انسانان ورسره مخ کړي دي. په لومړیو کې به د ټولنیزو شبکو ګټې او ورپسې یې زیانونه په تفصیل درته بیان کړم.

د ټولنیزو شبکو یوه ګټه دا ده چې د دوستانو، کورنیو او همکارانو ترمنځ اړیکې اسانه کوي. خلک له خپلو عزیزانو سره پر اسانۍ سره اړیکه نیولی شي، حتی که په لرې فاصله کې هم وي.

معلوماتو ته لاسرسی: ټولنیزې شبکې خلک له تازه خبرونو، علمي معلوماتو او نوي ټکنالوژۍ سره نښلوي. د نړۍ هر ځای ته په ډېره لږه موده کې معلومات رسېږي.

د سوداګرۍ وده: ټولنیزو رسنۍ سوداګرو او شرکتونو ته دا فرصت ورکوي چې خپل محصولات او خدمات په نړیواله کچه معرفي کړي. دا نه یوازې د برانډ پېژندنې لپاره ګټور دي، بلکې د پلورلو لپاره هم مرسته کوي.

زده کړه او روزنه: ټولنیز شبکې د زده کړې پلیټفارم په توګه هم کارول کېږي. په دې کې مختلفې وېبپاڼې او ویډیوګانې شته چې خلکو ته نوي مهارتونه ور زده کوي او د زده کړو فرصتونه زیاتوي.

ټولنیز پوهاوی: ټولنیزې شبکې د ټولنیز پوهاوي په لوړولو کې هم مهم رول لري. خلک د مختلفو ټولنیزو، اقتصادي او سیاسي مسایلو په اړه ډېر ژر خبرېږي او همدارنګه د خیریه پروژو لپاره ملاتړ جلبولی شي.

د نظرونو تبادله: ټولنیزې شبکې خلکو ته دا زمینه برابروي چې خپل نظرونه او نظریات له نورو سره شریک کړي. دا یو ډول د فکر او پوهې پراخولو فرصت دی، چې خلک کولای شي د خپلو فکرونو او نظرونو تبادله وکړي.

ساتېري: د ټولنیزو شبکو یوه بله ګټه دا ده چې د خلکو لپاره د ساتېرۍ منبع ده. ځکه چې د مختلفو لوبو پروګرامونه پکې وي او یو ډول سړي ورسره ذهني ارامه کېږي.

په ټوله کې، ټولنیزې شبکې نه یوازې د اړیکو او معلوماتو شریکه کولو وسیله ده، بلکې د زده کړې، سوداګرۍ او ټولنیزې پوهې لوړولو لپاره هم ډېر ګټور رول لري. ټولنیزې شبکې په پایله کې دوی له خپلو روزمره کارونو او مسؤلیتونو څخه پاتې کېږي.

چې ډېرې ګټې لري خو تر څنګ یې ډېرې ستونزې رامنځته کوي او ځینې مشکلات لري چې په لاندې ډول به یې بیان کړو.

د ټولنیزو شبکو له ټولو لوی زیان چې او اوسنی نړۍ کې خلک ورسره مخ دي هغه د وخت ضایعه کولو دي، ډېر خلک ټوله ورځ په ټولنیزو شبکو کې بوخت وي،چې

روحي فشار او خپګان: د ټولنیزو شبکو په ډېر استعمال سره ځینې خلک په خپګان او اندېښنو اخته کېږي. کله چې خلک د نورو د ژوند ښې شیبې ویني، ځانونه ورسره پرتله کوي او فکر کوی چې خپل ژوند یې ښه نه دی.

د محرمیت سرغړونه: د ټولنیزو شبکې د خلکو شخصي محرمیت زیانمنولی شي. د معلوماتو شریکول یا د ټولنیزو شبکو کمزورۍ له امله د خلکو شخصي معلومات د خطر سره مخامخ کېږي.

ناسم معلومات خپرول: ټولنیز شبکې زیات وخت ناسم معلومات خپروي ځکه چې په ټولنیزو شبکو کې هر څوک یو ادرس لري او سه یې چې زړه وغواړي نو خپاروي یې نه کوم قانون په نظر کې نیسي او نه کوم اصول، یواځې هغه څه خپروي کوم څه چې ښه ورته ښکاري هغه که د ټولو خلکو په تاوان هم وي.

د ټولنیزو شبکو یو تاوان دا هم دی چې انسان اعتیاد کوي او مجبوره یې چې هر وخت سر ورښکاره کړي چې دا ډول کارول یې انسان ته ډېر زیان لري هغه که د جسماني پلوه وي که له روحي پلوه.

شخصي اړیکې کمزورې کوي ځکه چې ټوله ورځ په مجازي نړۍ کې مصروفه وي او ټولنیز ژوند ترې پاتې وي او خپل حقیقي ژوند یې هېر کړی وي او خپلې کورنۍ او دوستانو ته ډېر کم وخت ورکوي او د مجازي اړیکو تر تاثیر لاندې وي. د ټولنیزو شبکو نا سمه کارونه انسان له درسه او کار څخه باسي او ټوله ورځ په غیر ضروري شیانو مصروفه وي، چې نن سبا ځوانه تر ډېر اغېزمن دي.

سایبري ځورول: په ټولنیزو شبکو کې د خلکو ځورول او تعقیبول یو بل لوی زیان دی. ځینې کسان د نورو د ځورولو او تحقیر لپاره ټولنیزې شبکې کاروي چې دا د قربانیانو د رواني فشار لامل ګرځي او تر څنګ یې ځینې کسان د کمترۍ احساس کوي ځکه چې ځینې کسان په ټولنیزو شبکو کې خپل عکسونه اچوي او ځان د نړۍ شتمن ښه یې خو نور کسان په دې سره ځان له نور کم او په دنیا کې د فقیر احساس کوي.

په اخر کې به دا ووایم چې ټولنیزې رسنۍ چې نن سبا یې په نړۍ کې یو ډول بدلون ته لاره هواره کړې ده او په نړۍ کې یې ډېر مثبت تغیر راوستی دی لکه د زده کړو په برخه کې د ټولنیزو معلوماتو په برخه کې او تر څنګ یې د ټولنیزو اړیکو په برخه کې چې ټوله نړۍ یې د یوه کوچني کلي په شان کړې ده خو تر ډېره یې په اوسني عصر کې ستونزې هم پیدا کړي،چې نن سبا بشریت ورسره لاس او ګرېوان ده هغه که د وخت ځایه کول دي ترڅنګ یې ځینې ځوانان د کار وخت په بېځایه ... **٦مخ**

# آفات قلبی در دوران حاملگی

**رنځوروال داکتر ماری« شعیبی » ترینر متخصص نسایی و ولادی شفاخانه رابعه بلخی**

امراض قلبی بعد از امراض روانی عامل اصلی مرگ ومیر مادران در برتانیا است ( میزان مرگ و میر مادران ۲,۲٪ در هر صد هزار ولادت است و فیصدی مرگ مادران از سبب آفات قلبی ۰,۱ – ۰,۸ است که شامل آفات کسبی و ولادی قلبی هستند .

حاملگی یک دوره فیزیولوژیک مهم در زندگی زنان است که با تغییرات گسترده در سیستم قلبی-وعایی همراه می‌باشد. در برخی از زنان، این تغییرات می‌توانند منجر به تشدید یا بروز آفات قلبی شود که سلامت مادر و جنین را به خطر می‌اندازد. این مقاله به بررسی شیوع، علل، علایم، عوارض و راهکارهای مدیریتی آفات قلبی در دوران حاملگی پرداخته و اهمیت تشخیص و درمان به‌موقع را مورد تأکید قرار می‌دهد. همچنین، گروهی از مریضان قلبی که حاملگی برای آنها پرخطر محسوب می‌شود، راه‌های پیشگیری از حاملگی ، معاینات ضروری قبل از حاملگی ، تعداد ویزیت‌های لازم در دوران حاملگی و اختلاطات ولادی مادر و نوزاد در این مریضان معرفی خواهند شد.

سیستم قلبی-وعایی در دوران حاملگی تحت تأثیر تغییرات وسیع در دوران خون قرار می گیرد. افزایش حجم خون، کاهش مقاومت رگهای محیطی و افزایش مقدار خون بیرون آمده از قلب از جمله تغییرات اساسی در این دوران هستند. در زنان با امراض قلبی زمینه این تغییرات می‌تواند خطر بروز بی کفایتی قلبی، بی نظمی های کار قلب و سایر عوارض را افزایش دهد. بنابراین، آگاهی از تأثیر حاملگی بر وضعیت قلبی و مدیریت مناسب مریضان قلبی حامله اهمیت بسزایی دارد.

هر خانم مصاب آفات قلبی باید مشوره قبل از ولادت و مراقبت لازم را در جریان حمل توسط داکتر کاردیولوژست داشته باشد. زیرا بسیاری از مریضان ممکن پروسه نارمل حاملگی را داشته باشند، در حالی که نزد بعضی مریضان خطرات و اختلاطات غیر قابل برگشت موجود میباشد . تمام مریضان مصاب آفات ولادی قلبی باید توسط متخصص کاردیولوژی و متخصص ولادی تحت مراقبت جدی قرار داشته باشند .

شیوع و عوامل خطربرای واقع شدن امراض مادرزادی قلبی، امراض دریچه‌ای قلب ، کاردیومیوپاتی‌ها و امراض ایسکمیک قلب از جمله مهمترین علل آفات قلبی در دوران حاملگی محسوب می‌شوند. افزایش سن مادر، چاقی، دیابت حاملگی ، فشار خون بالا و سابقه خانوادگی امراض قلبی از جمله عوامل خطری هستند که احتمال بروز عوارض قلبی را در این دوران افزایش می‌دهد.

تغییرات نورمال قلب در حاملگی شامل افزایش جریان خون قلبی است که حدود ۳۰ تا ٥۰ درصد در مقدار خون قلبی رخ می‌دهد. حداکثر آن در هفته‌های ۲٤ یعنی ماه ششم حمل الی ۳۲ هفته، یعنی ماه هشتم حمل مشاهده می‌شود. تغیر دیگر کاهش مقاومت رگ های محیطی است، این تغییر منجر به پایین آمدن فشار خون دیاستولیک می‌شود . مقدار خون از ٤۰ تا ٥۰ درصد افزایش می‌یابد که ممکن است در مریضان قلبی منجر به بی کفایتی و ازدیاد خون در قلب گردد. اعراض و علایم آفات قلبی در حاملگی شامل نفس تنگی ، خستگی مفرط ، تپش قلب ، پندیده گی اندام ها ، درد قفس سینه و ضعف و بیحالی یا سرچرخی میباشد . مریضان قلبی که مصاب سندرم آیزن منگر، بلند بودن فشار ریوی اولیه، کاردیومیوپاتی شدید، تنگی شدید دریچه های جوف های قلبی (اورتا یا میترال ، آنوریسم اورتا و مارفان با قطر بیش از 4.5 سانتی‌متر نباید حمل بگیرند .

عوارض و آفات قلبی در حاملگی شامل مرگ ومیر مادر و جنین، بی کفایتی قلبی که بصورت آنی واقع ...**٦مخ**

# پر اسلامي ټولنه د لوړ ولور اغیزې څه دي؟

خالد تسل

په اسلامي ټولنه کې لوړ ولورونه ډېرې ناخوالې زېږوي او د ټولنې ځوانانو ته جدي ګواښ دی. د لوړ ولور د پرېکولو په پار ځوانان له هېواده د باندې سفرونو ته مجبور شول،څوک په کې د سمندري اوبو او کبانو خوراک شول،څوک د مسافرت او پردیسۍ کلونه کلونه په پردیو هېوادو کې تېروي او څوک په کې د پردي حکومتونو له لوري په یو او بل نوم د زندان تر تورو تمبو ورسېدل. لوړ ولورونه د ځوانانو او پېغلو د بې لارۍ سبب ګرځي، که چېرې ولورونه ارزانه وای، نو اوس به ټولنه له ډېرو ستونزو څخه خالي وای. د لوړو ولورونو له امله هر ځوان د خپل راتلونکي په فکر کې دي، هغه څوک چې د ماښام نفقې ته حیران دي، نو تر وس پورته ولور به څوک اداء کړای شي.

لوړ ولورونه د اسلام څخه د ناخبرتیا او نه عمل په صورت کې ټاکل کېږي. اسلام چې په هره برخه کې د منځلارۍ فلسفه لري،نو د ولور په اړه هم انسانانو (مسلمانانو) ته تر وس لاندې رقم ټاکي. د ډېرو ناخوالو د راپورته کېدلو اندېښنه هغه وخت پیدا کېږي چې له اسلام او اسلامي معلوماتو څخه ټولنه او وګړي په فاصله کې پاتې شي.

نو بناءً د دې اسلامي نظام اړوند ادارو ته په کار ده، چې په دغه اړه عامه پوهاوي او نوري غوره برنامې په لاره واچوي ،تر څو د ولس مخور مشران له لوړو ولورونو څخه تر وس لاندې ولورونه ټاکلو ته مجبوره کړي او مخور بیا په دې ډګر کې د خپل اختیار نه دي چې خپلسري ولور بیا وټاکي، د اسلامي دین په رڼا پر ټاکل شوي رقم باید اکتفاء وکړي.

# پـر ښـځو د خاوند حقـوق

مولوي عبدالجبار درویش

په قرآنکریم کې دالله تعالی ارشاد مبارک دی: سړی د ښځو منتظم او نګهبان دی یعنې مسئول دی،ځکه الله تعالی دوی نه بعضو ته په بعضو باندې فوقیت او اوچتوالی ورکړی دی همدا شان له دې وجه نه چې هغوی خپل مالونه خرچ کوي نو نېک بختې ښځې فرمانبرداري کوي او په حفاظت د الله تعالی د خاوند په غیر موجودګۍ یعنې د هغوی د مفاداتو حفاظت کوي.

د حضرت ابو هریره رضی الله تعالی عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل؛ کله چې خاوند ښځه د فعل زوجیت یعنې دکوروالي لپاره را وغواړي او ښځه رانه شي او خاوند هغه شپه په غوصه کې تېره کړي،نو د سبا پورې فرښتې داسې ښځه باندې لعنت او ملامتیا کوي (متفق علیه)

د بخاري او مسلم په یو بل روایت کې دي چې کله ښځه د خپل خاوند بستره پرېږدي شپه یوازې تېره کړي نو فرښتې او ملایکې تر سبا پورې په هغې لعنت کوي په یو بل روایت کې داسې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل قسم په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما روح دی چې یو خاوند خپله ښځه خپلې بسترې ته را وغواړي او ښځه انکار وکړي نو د اسمان والا تر هغه وخته پورې له هغې نه ناراضه وي تر څو چې د هغې خاوند د هغې نه وي راضي شوی یعنې خوشحاله شوئ حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د یوې ښځې لپاره دا جایز نه دي چې هغه د خاوند په موجوده ګۍ کې د هغه د اجازت نه بغیر د هغه په کور کې د راتللو اجازه ورکړي (متفق علیه)

حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنهما بیان کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د ستاسو نه هر سړی نګران یعنې مسئول دی او د هر نګران یعنې مسئول او ذمه وار نه به د خپل ماتحت یعنې د ده لاندې په باره کې پوښتنه کولای شئ حاکم هم ذمه وار دی او سړی هم په خپل اهل بیت او اهل خانه ذمه وار دی او ښځه هم د خپل خاوند د کور او د خپل اولاد مسؤله،نګهبانه او ذمه واره ده او د هر ذمه وار او مسئول نه به. دخپل ماتحت یعنې لاندې خلکو پوښتنه کېږي (متفق علیه)

حضرت ابي علي طلق بن علي رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کله هم یو سړی د خپل خواهش پوره کولو لپاره خپله ښځه را وغواړي نو هغې لره فوراً راتلل پکار دي اګر چې هغه په تنور ډوډۍ پخه وي (ترمذي شریف)

حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم وفرمایل که چېرې ما چاته د چا په مخکې د سجدې کولو حکم ورکولی نو ښځې ته به مې ویلي وو چې هغه خپل خاوند ته سجده وکړي (امام ترمذي شریف)

ام المومنین ام سلمه رضي الله تعالی عنها بیان کوي چې رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د یوې... **٦مخ**

> **په قرآنکریم کې دالله تعالی ارشاد مبارک دی: سړی د ښځو منتظم او نګهبان دی یعنې مسئول دی،ځکه الله تعالی دوی نه بعضو ته په بعضو باندې فوقیت او اوچتوالی ورکړی دی همدا شان له دې وجه نه چې هغوی خپل مالونه خرچ کوي نو نېک بختې ښځې فرمانبرداري کوي او په حفاظت د الله تعالی د خاوند په غیر موجودګۍ یعنې د هغوی د مفاداتو حفاظت کوي.**

# لوېدلي ستوري

## يوشپېتم ستوری

۶۱ - شهيد عمرګل
نوم: عمرګل
د پلار نوم: محمد عزيز
ځای: افغانستان، وردګ، سيدآباد، تنګي دره، لاچي خېل (لاچخېل)
عمر: (۴۰) کاله
مدني حالت: متأهل

يتيمان: يـوه غمجنه کونډه او پوره پنځه ماشومان ترې پاتې شوي، چې دری يې په کې هلکان او دوې نجونې دي، کـشر زوی يې (عبدالطيف) د درېيو کالو ؤ چـې د پلار له مينې جدا شوی دی.

زده کړې: مـروج فقهي علوم يې تر يوې اندازې لوسـتي او امامتونه يې هم کـړي وو ځکه خو په ملا سره مشـهور ؤ؛ دلته (په افغانستان کې) په عامه اصطلاح، ملا هغه چا ته ويل کېږي چې په کوم جومات کې امامت ولري خو آخرنۍ دورې (وړه دوره او لويه دوره) يې نه وي کـړي او چې کله آخرنـۍ دورې ختمـې کړي، نو بيـا هغه کس ته مولوي ويل کېږي.

د شـهادت نېټـه: (۱۳۹۰/۵/۱۴) هجري لمريز کال.

د شهادت لامل: په سمه نيمه شپه کې د ناتو بې رحمه اشغالګرو عسکرو په خپل کور کې د خپلې ښـځې او ماشـومانو ترمخ په داسې حال کې شـهيد کړ چې د کلي خلکو ته يې د اختر لپاره په مزدورۍ (د پيسو په بدل کې) جامې ګنډلې.

مزار: په خپله پلارنۍ هديره کې.

کيسه کوونکې: د شهيد ځورېدلې کونډه.

راسره مل کسـان: رفيع الله او سيد حبيب.

مکمله کيسـه: وروره! کيسه خو داسـې وه چې د شـپې لس بجې د هلکانو پلار د کلي د خلکو جامې ګنډلـې او ما تنۍ ورته اېښـودې چې يو په يو درب دروب شـو! پر بام امريکايان را وختل او بيا دستي سرای تـه راکوز شـول، خو دوې دقيقې لا سـمې نه وې پوره شـوې چې سـيده کوټې ته هـم را د ننه شول او لومړی يې زه تر لغتو لاندې کړم او بيا يې د هلکانو پلار پسـې وويشت؛ خورکۍ کيسه په داسې لړزېـدلي غږ پيل کړه چې والله که يې بلکل هېرولی شم! ډېر ځان مې ټينګ کړ مګر نه کېدله، ځکه خو مې لاسونه په لړزه شول او له سترګو مې اوښکو سر وکړ (اوف خدايه! زموږ پر مظلومو خويندو بې رحمه غربيانو څومره ظلمونـه وکړل!) له لږ ساتکي سکوت وروسته مې پوښتنه ترې وکړه چې ښه خورې! ياني له خاوند سره دې تا هم د اولاد په خاطر د يـوې ګولې ډوډۍ پيدا کولو لپاره مرسـته کوله؟ دې راته وويل چې هو وروره، مجوره ومه، نو څه مو کـړي وای! جامې به ده ګنډلې او تنۍ به ما ورته اېښودلې، همـدا راز د جامو ځينې سـيده او آسانه درځونه به هم ما ورته ګنډل اوتو مو د سـکارو ؤ! چې په هغه کې به زغال هم مـا ورته اچول او پوه کول به مې، بيا به مې نو کوټې تـه راوړ او جامې به مې پرې اوتو کولې، هغه مهال خو دلته برقونه هم نه وو ځکه خو به مو د تېلو الکين لګولو، نو په هغو کې به چې کله تېل خلاص شول هم به ما ور اچول، نو څهٔ مې کړی وای وروره ناچارې او غريبي وه، ګډ ژوند او سـخت مسکنت ؤ.

- ښه خورکۍ! تا وويل چې خاوند مـې يـې زموږ پـه مخکـې راته وويشت؟

- هو وروره، دا همغه کوټه ده چې خاوند مې په کې شهيد شوی دی! زهٔ او کشران اولادونه مې دلته ناسـت وو او دی هاغلته مخامخ چې دېوال تـه يـې ودرولو او ويـې ويشـت، مګر ږغ مـې وا نورېده! (دلته زموږ ملګري ورته وويل چې البته په بې غږه وسله يې ويشتلی!) کله يې چې دی وويشت نو موږ يې بيا له کوټې څخه سرای ته و ايسـتلو او زهٔ يې هلته نوره هم پسې ووهلم (غمجنې خورکـۍ مې چـې له يـو عالم نا اميديو او دردونو ډکه کيسـه راته کوله نو موږ ټولو په شمول د مشر زوی يې يو ځای ورسره ژړل، ځکه چې داسې کيسې ته هېڅ زړهٔ صبر نشي کولی او نه هم سـترګې وچې ورته تم کېدلی شي، سخت تأثيرناک او له نړۍ دردونـو ډک غږ يې ؤ، يقين لرم چې تر مرګـه به مې يې انګازې په سر کې ګرځي) وروره چې کله يې سرای ته و ايسـتمه نو هلته يې غوښـتل چې ما هم وولي، بيا کوم بـل کس منع کړ چې دا نو څهٔ کوې، تـورسرې ده مه يې وله! د ماشومانو پلار يې چې راته شهيد کړ او زهٔ يې په وهلو وهلو له کوټې و ايستمه نو پهٔ دغهٔ لاندې دهلېز کې مې ټيکرى هـم ولوېد، بيا يې همداسې په لغتو او سوکانو سرای ته ټېله کـړم، چې په کوټه کې مې دماشومانو چيغې شوې، لږ وروسته يې هغوی هم راپسې را و ايستل او کشر زوی مې يې ماته ونيو چې دا واخله ژاړي، هغه داسـې وېرېدلی ؤ چې اوس مې هم له ياده نه وزي! بيا يې له سرای څخه شپاله (د خرو او غواګانـو غوجلې) ته بوتلو، لږ شـېبه يې هلته حصار کړي وو، بيا يې بېرته سرای ته را و ايسـتو او له سرايه يـې بوتلو بيرون کوڅې ته، ګواکې ګرد يې يوې او بلې خوا ته تاوولو (دردمنه خورکۍ مو دلته بيا سلګيو واخيسته او موږ سم ورسره ژړل) وروره! چې له يوې خوا تکه توره شپه او پردۍ مزدوري وي، له بلـې خوا يې د کور سرپرسـت پهٔ خپل کور کې او د خپل فاميل ترمخ په وحشت سره شـهيد کړی وي، دريم دا چې سـړی پر خپل ځان او پاتې يتيمانو هـم وېرېږي، خو تر ټولو مهمه دا چې په همدغو امبار غمونو کې بيا هم يو وحشي ځناور سـړی يوه او بله خـوا ځغلوي نو څومره زور به لري!؟ خو دا هر څهٔ هېر شول! اوس دومره څوک نشته چې زموږ پوښتنه وکړي، تاسو خو دا دی راغلـئ الله پاک دې اجرونه درکړي، خـو دا دواړه چې درسره راغلي دوی مې کليوال دي! هېڅوک پر مـوږ کليمه نه وايـي (ګواکې پوښتنه مو نه کوي) هر وخت چې کلي ته د مرسـتو بار موټر زموږ د کور تـر مخ تيرېږي نـو زما حال يوازې اللـه ويني چې څومره زور راکوي؟ چې ګواکې ولې؟ موږ نو څهٔ ګناه کړې ده چې څوک مرسته نـه راسره کوي؟ په ټول وخت کې فقط دوه ځله له موږ سره مرسـته شـوې، يو ځل سري مياشـتې څهٔ توکي راکړل او بل وار له تنګۍ درې څخـه کوم چا پنځـه زره (۵۰۰۰) افغانۍ رالېږلې وې بس خلاص! نور دې تر نن تاريخه يوه ټنګه لا راته اور شي چـې چـا دې راکړې وي، هېڅوک هم زموږ پوښتنه نه کوي چې دا خلـک دردېدلي او کړېدلي دي، تا ته دې الله خير درکړي چې زموږ غريبانو پوښتنه دې وکړه او زموږ د شـهيدانو غم درسره دی! ما ورتـه وويل چې ګـوره خورکۍ!

### امين وردک

والله قسم چې موږ هم ډېرې ګيلې لـرو خو ګټه نه کوي! الله تر ټولو ښهٔ دی او ته شکر وباسه چې هغه حالـت دې پر دې واوښـت، اوس خو دې زامن ځوانان دي ماشاءالله او فکر کوم چې کـوم يوهٔ ته دې کوژده هـم کړې ده؟ ځکه چې پر دېـوال خو د مريو ځونـډې او په ګوتو جوړ شـوی دسمال ښکاري او دوه لوټونه هم پـرې را ځوړند دي! دې راته وويل چې هو وروره، الحمد لله! هغه مخامخ انځور چې پر دېوال ښکاري دا مې مشر زوی دی او همدغه ته مې کوژده کړې او دا بل هم اوس ښهٔ دی په دوکان کې د موټرسيکلونو مستري توب کوي، نو شکر دی ګذاره خو مو لږه ډېره کېږي، خو د سـړي زړهٔ درد کوي چـې زموږ له کـوره او موږ ته تر ټولو مهم کس تللی.

-هو خورې! ستا ګيله بلکل پر ځای ده، خـو دا هم د يادونې وړ ده چې شـهيدان او يتيمان بيخـي ډېر دي او مشران فقـط يوه د جمعې ورځ رخصتي لري! نو رسېدنه يقيناً سخته ده، کنه مجاهد مـشران هېڅکله هـم يتيمان او د شـهيدانو کورونه نه هېروي، خو لـه دوکاندارانو به موږ او تاسـو ګيلې نه کوو! اصل کې خو له دغهٔ کتاب څخه زما يو هدف همدا دی چې شـهيدان هېر نه شي! نـو کله چې له خيره کتاب چاپ شي او خلک يـې ولولي، بيا هر سړی خبرېږي چې چا څومره قرباني ورکړې او څـوک څومره ځورېـدلي دي، خو دا دې راته و نه ويل چې کله ستا خاوند شهيد شو نو بيا تا د کور خرڅه له کومه کوله او دا وړوکـي يتيمان دې څهٔ رقم را لوی کړل؟

-وروره رازق مطلـق خو الله پاک دی! خـو ما بـه په خپلـه بزګري کوله؛ پټې به مې پـه بېلچه اړول، لـو به مې پخپله کولـو او للمې به مې په دغو لاسو راټولول او ترېشل کول به مـې، نو څهٔ مې کړي وای! (زهٔ دلته يو ځل بيا تر سـخت تأثير لاندې راغلم او نږدې وه چې چيغه مې له خولې وخيژي خو ځان مې ټينګ کړ) دا چې د دغې خورکۍ په غږ کې له سره تر پايه يو قسـم درد ما احساسـولو نو يوه پوښتنه راته پيدا شـوې؛ چې ګنې خامخا بهٔ يې دا خاوند تر حد اوښتی پرې ګـران او ورسره صميمـي ؤ ځکه خو مې ورتـه وويل چې خورکۍ رښتيا راته ووايه! له خاوند سره دې ژوند څرنګه تېر شو او تهٔ څومره پرې ګرانه وې؟ دې راته وويل چې وروره کهٔ رښتيا درته ووايم نو هغه ډېر تندخويه سړی ؤ؛ زهٔ يې باربار په لغتو، سـوکانو، لښتو، حتی په کېبلو لا وهلې يمـه او په ډېرو خو يې څوځو واره ويشتلې يمه، خو ما هر څهٔ ورته ښنلي دي.

ما ورته وويل چې په څهٔ خاطر يې دومره آسانه ښنې؟ دې وويل: ځکه چې مېړهٔ مې ؤ او حق يې را باندې لرلو.

ما بيا ورته وويـل چې مېړه خو دا حق نه لري ترڅو ښـځه په ناحقه په داسـې ډول ووهـي چې د هېڅ شي صرفـه هم پرې و نه کړي؟ دې وويل چې هغـه لږ مريض غوندې ؤ، خو کله به چې ښهٔ شو نو بيا به يې نازولم هم! خو له ټولو مهمه دا چې کله مې يې شـهادت په خپلو سترګو وليد، نو دومره زړهٔ مې پرې سوی چې تر قيامته به مې هېر نشي او چې هر څومره بد يې هم راسره کړي...**۶مخ**

# فرهنگ و آداب شهرنشینی را نهادینه سازیم

### ضربی

فرهنگ شهرنشینی مجموعه یی از هنجار ها، ارزش‌ها، آداب ، قواعد، مقررات و... اسـت که رعایت این شـاخص ها، سـبب ایجـاد نظم و قانون مداری در شـهر می شود ویا به عبارت دیگر فرهنگ شهرنشینی عبارت از فضاها، معیارها، قواعد و مقرراتیست که به زندگی شهری نظم وبرابری می بخشد. زیرا تمام ویژگی های شـهری به خصـوص محیط زیست شهری به طور مستقیم وغیر مستقیم متأثر از فرهنگ شهرنشینی است. هرچند فرهنگ شهری بخشی از فرهنـگ عمومی جامعه اسـت که به طور مسـتقیم با برنامه ریزی ومدیریت شـهری ارتباط دارد، اما اگر به فرهنگ شهری منحیث یک اولویت اساسی، ارجحیت و اعتبار قائل نشـویم، بدون شک مدیریت وبرنامه ریـزی فرهنـگ عمومی جامعه که از جانب مسئولان، طرح ریـزی وتطبیق می گـردد، نیز زیر سـوال قرار خواهد گرفت که باید شـهروندان درتبانی با مسئولان در پاکی ونظافت شهر وماحول خود، همچنان رفتار ،کـردار وپندارخود توجـه کننـد، زیرا شـهروندان در قبال یکدیگر مسئول هستند ونباید برای همدیگر، دست اندر کاران و مسئولان امور مزاحمت ایجاد نمایند. موضوع مـورد نظرما بـا این چند تعریف خلاصـه نمی شـود، بلکه باید بـه صورت اجمالی به بعضی از عادات و رفتـار هایی که باعث بی نظمی وانارشیزم در جامعه می گردد، بپردازیم:

بنـاءً درتعریـف ها نوع عـادات، رفتار، کردار، آداب، پذیرش قواعد، مقررات، پندارها و... دربرگیرنده، اخلاق انسانی اسـت که رعایت و پرداخـتن به این ها هـم ضروری و درعین حال الزامی اسـت، زیرا در شهر ها این انسان است که با جمعیت زیادی از افراد سروکار دارد که باید مطابق سلوک، عادات وقواعد شهری با سایر افراد واشخاص رفتار کند تا سبب ایجاد بی نظمی نگردد، چون اخلاق شهری شـامل کردار، گفتار، رفتار وتعاملات انسان با سایر افراد جامعه می باشد که باید با رعایت و در نظرگرفتن این ویژگی ها انسان به صورت مسالمت آمیز یکجا با دیگران زندگـی نماید ویا بـا رعایت نظم و قانـون از حوادث وناهنجاری هایی که سبب گسستن میان افرادجامعه می گـردد، جلو گیری کند. به گونه مثال: اگر در یک مجتمع که انسان ها زندگی می کنند، یکی از افراد با عدم رعایت فرهنگ شـهری زباله ها را در مقابل خانه همسایه بریزد، طبعاً این عمل سبب رنجش همسایه شـده جدایی را بار می آورد ویا هم اگـر در یک جـاده عمومی نظم و قانون ترافیک از طـرف رانندگان وسـایط نقلیه رعایت نشـود، نظم جاده مختل شده، سـبب تصادمات خونین ترافیکی خواهد شد. همین گونه اگر در استفاده از پیاده رو ها، از سـوی عابرین نظم رعایت نشود وبه جای استفاده از پیاده رو از جاده اسـتفاده گردد ویا هم از بالای کتاره های نصب شـده که جاده وپیاده رو را جدا ساخته، بپرند که این عکس العمل نه تنها فرهنگ شـهر نشینی ما را زیر سوال قرار می دهد، بلکه جریان ترافیک جـاده را نیز مختل می سازد و باعث حادثه می شود. به همین قسم اگر پوست میوه، قوطی نوشـابه یا بوتل آب ودیگر اشـیای استفاده شده را به روی جاده بریزیم و یاهم در سرویس های شـهری و مکان های سر بسـته با حرف زدن فضا را مختل سازیم و یاهم با بلندگو هایی که دست فروشان برای جلب مشتری اسـتفاده می کنند به آلودگی صوتی بیافزاییم ویا هم زباله ها را به عوض مکان مشخص به روی سرک ها ویا جاده عمومـی بریزیم و... ، طبعاً فرهنگ شهر نشینی را رعایت نگرده، سـبب بی نظمـی و قانون گریـزی در جامعه شـده و زندگی شهری را مختل می سازیم.

بنابریـن بایـد در راسـتای تقویت ونهادینـه شـدن فرهنگ شـهری یـا شهرنشـینی بـا مسـئولان و مدیـران شـهری، همـکاری نماییم تا یـک شـهر عـاری از هرگونه آلودگـی صوتـی، محیطـی، اخلاقـی و قانـون گریزی داشـته باشیم.

# با چه راهکارهایی فرهنگ مطالعه را در جامعه خود نهادینه سازیم

### استوار

در حقیقت امر ساز و برگ امروزی در جهان از برکت علم است.

کسـب علم تنها از طریق مکتب، مدرسـه و پوهنتون نیسـت، بلکه داشته های معنوی بشریت که همانا کتاب اسـت و مطالعه کتاب یگانه نردبان رسـیدن به پویایی وقوام در سازنده گی وبالنده گی یک جامعه بشمار می‌رود.

در جهان امروز فرهنگ مطالعه به یک اصل پذیرفته شـده در جوامع بشری مبدل گردیده است .

کشـور عزیزما که در طول تاریخ علماء وشخصیت های بزرگ را در خود پرورش داده اسـت، مهد علم وتمدن بوده است و آثار و داشته های معنوی آنها چون ودیعه برای ما به جا مانده است که می‌توانیم از اندوخته ها وتجارب آن‌ها بیاموزیم، کتابخانه های عامه و در حاشـیه آن کتابخانه هـای فرعی از نهادها، اشـخاص و افـراد در هرگوشـه ای وجود دارد که باید از آنها استفاده بهینه صورت گیرد.

شـیرازه مطلب وغرض اینست که چگونه کتاب را به مردم ومردم را به کتاب برسانیم و فرهنگ مطالعه را در میان مردم به ویژه در بین جوانان به یک اصل تبدیـل نماییم. در کنار اینکه کتاب فروشی ها در بازار ها وجود دارد و داد و سـتدهایی میان اهل مطالعه وشایقین کتاب و مطالعه صورت می گیرد، کتابخانه های عامه که فعالیت و مسئولیت سراسری در کشـور دارد، معیار و ملاک اصلی در خدمتگذاری به مردم اسـت. در عرصه نهادینه سازی فرهنگ مطالعه که الحمدلله غنی از کتاب در بخش های مختلف میباشد.

به اسـاس قانون ملول دیوی در کل کتاب ها را به ده بخش تقسیم نموده اسـت، به غرض سـهولت استفاده از کتـاب ها و در ضمن مشـخص نمودن شـعبات کتابخانـه به بخش جوانان ، تالار مطالعه، افغانسـتان شناسـی، کتابخانه توزیـع و... در کنار اینکه در مرکز کتابخانه های عامـه شـعبات مختلـف در بخش های مشخص وجود دارد، کتابخانه هـای سـاحوی در نواحی مختلف وجـود دارد. همچنـان در ولایات کشـور کتابخانه های عامه وجود دارد، به غرض اسـتفاده مردم که به نظرنگارنده بسـنده نبوده و بایسته است در دور ترین ولسوالی ها، قراء وقصبات کتابخانه ایجاد شـود و با یک تضمین مطمین کتاب به دسترس مـردم قـرار گیـرد. در نهایت امر کتاب به نزدیکترین منطقه زیستی مردم رسانیده شود، تا باشد مردم به سهولت کتاب مورد نیاز خویش را در یافت کند. اینست رساندن کتاب به مردم و اینکه چگونه مردم را به کتاب برسانیم؟ این مربوط می‌شود به بزرگان خانواده ها، بزرگان قومی محـل و منطقـه وخـبره گان و در ضمن ملا امامان مساجد و میدیاها کـه بر نامه های داشـته باشـند به غرض تشویق مردم به کتاب خوانی ومطالعه، تا باشد مردم به سوی کتاب بروند.

بدون مطالعه هیچگاهی یک جامعه به ترقی و تعالی نمیرسد .

تنها راه رسـیدن به شکوفایی از راه مطالعه و کسب علم ممکن است .

پـس هموطنـان عزیز؛ بـه ویژه نسـل جوان کشـور! بیایید مطالعه را به حیـث یک اصل در تقسـیم اوقـات زنده گـی خویش شـامل نماییم.

# په ټولنه کې د شاعرانو رول

### نوري

شاعران ډېر زيار او کړاوونه زغمي، چې د شعر او شـاعرۍ نړۍ ته ور داخلېږي. دوی سـفرونه کوي او د ټولنې له بېلا بېلو وګړو سره اړيکې ټينګوي، څو معلومات يې ډېر شي. د معلوماتـو د ترلاسـه کولـو پرته شاعرانو ته سوژه په ستونزمنه توګه پيدا کېږي. که موږ خوشحال خان، رحمان بابا او همداسـې په سلګونو نورو شـاعرانو ژونـد مطالعه کړو دوی لـه سـتونزو او کړاوونو ډک سـفرونه کړي، چې د شاعرۍ لوړ پوړته رسـېدلي دي. سربېـره پر دې شـعر جوړول استعداد غواړي، چې هر څوک دا اسـتعداد نه لري. موږ ډېر کسان لرو، چې په ادبياتو کې يې ډوکتورا ترلاسه کړې او کتابونه يې ليکلي؛ خو د شعر جوړولو استعداد نـه لري. شـاعران ټولنه د شـعر او ادب لـه لارې پوه کوي، د شـعر او ادب مينان هم د شـاعرانو د اشعارو په رڼا کې خپله لاره پيدا کولی شي.

ښاغلی اجمل اند د ولي محمد زوی، په ۱۳۵٦ لمريز کال د ننګرهار ولايت د خوګيانيو په کوز بيار کې زېږېدلی دی . لا دوه کلن و ، چې په هېواد کې د جګړو اور بل شو ، له خپل کور او کهول سره کډوال شـو او د پاکستان په هنګو سيمه کې مېشت شول .ده خپلې لومړنۍ زده کړې په پښتونخوا کې ترسره کړې. په ۱۳۷۱ لمريز کال ، چې ننګرهار مجاهدينو ونيو ، اند د خوګيانيو د ملکيار هوتک په لېسه کې شامل شـو. په ۱۳۷٤ لمريز کال فارغ او په جلال اباد کې دساينس او ټکنالـوژۍ پوهنتون دحقوقو او سياسي علومو په پوهنځي کې شامل شو. يونيم کال وروسته يې د ننګرهار پوهنتون ته ځان بدل کړ، خو ډېر ژر د ټولنيزو او اقتصادي ستونزو له امله تحصيلات ورڅخه پاتې شول او په کور کې د کرګرۍ پرچارو بوخت شـو. له يو کال وروسـته پېښور ته ولاړ او هلتـه يې د هيلي مجلې سره کارپيل کړ، دلته ترڅو مياشتو تيرولو وروسـته يـې د بي بي سي په تعليمي پروژه کې د ماشومانو د خپرونو لپاره د ليکوال او پروډيـوسر دنده خپله کـړه او د دونيم کلونو نـه يې ډېره موده تېره کړه. د ماشـومانو لپاره تر سلو زياتې ډرامې او کيسې وليکلې . د ۲۰۰۲ زېږديز کال له پيل وروسـته کابل ته راستون شو او په ازادو رسنيو کې پر دنده پيل وکړ . پنځه کاله يې دندې ته دوام ورکړ. په دې موده کې يې د افغانستان د بېلا بېلو مسئلو په اړه راپورونـه او مطالب چمتو کړل . اجمل اند اوس له هېواده بهر ژوند تېروي. په عين حـال کې خپلو ادبي هلو ځلو ته هم دوام ورکوي . د هغه د شعرونو يو لړ کتابونه چاپ شوي خو د نثر په برخه کې يې يو شـمېر ليکلي آثار هم شته چې تر اوسه پورې نه دي چاپ شوي.

چاپ شوي اثار:

د زړه پر پاڼه مـې انځور دی ګلاب ـ د شـعرونو لومړۍ ټولګـه ۱۳۷۷ لمريز کال، پـه څپو کې انځورونه - د شـعرونو دويمه ټولګه ۱۳۷۹ لمريز کال، هېنداري او چينې - د شعرونو دريمه ټولګـه ۱۳۸۵ لمريز کال، دا ښار هغه غرونه - د شعرونو څلورمه ټولګه ۱۳۸۵ لمريز کال ناچاپه اثار: له بنګاله تر کابله ناول، خوماره ناول، تر کوکنار ګله د لنډو کيسو ټولګه، سيند په پرخه کې د پروين پژواک د دري شـعرونو ژباړې، د وينس سوداګر د شيکسپير ديوې ډرامې ژباړه، شېبې د څو نړيوالو کيسو ژباړه: سرودونه د نړۍ د څو هېوادونو د ملي سرودونو ژباړه، ملي کلتور ـ د افغانستان د ملي کلتور او ورپېښو ګواښونو په اړه يو څېړنيزه رساله باندنۍ ترېنې. شاعري او ليکوالي په زړه پورې مسلک دی، چې يو ځل په کې ښکېل شو بيا موږ ته خاموشي چوپتيا ښـه نه ښکاري. هلې ځلې کوو، چې شـعرونه جوړ کـړو او يا نثرونه وليکو، خو په دې برخه کې د هرچا اسـتعداد او پوهه توپـير لري، څوک ډېـر کتابونه او ديوانونه ليکـي او څوک لږ ليکي. هغه مهال له موږ څخه ښه ليکوالان جوړېدلـی شي، چې په پرله پېسـې توګه د ليکوالۍ دندې ته دوام ورکړو او ځنـډ په کې را نه ولو. په داسـې حالت کې بريالیتوب ته رسېدلی شو.

## د اخلاقي فساد...

دا ارزښتونه باید راتلونکي نسل ته هم ور انتقال شي. د دې مسؤلیت له ټولو مهم بنسټونه کورنۍ، ښوونځي او ټولنه دي. که دا درې واړه بنسټونه خپل رول په سمه توګه ترسره کړي، نو اخلاقي فساد ته به لاره نه وي. کورنۍ د ماشوم د اخلاقي شخصیت د جوړښت لومړۍ مرحله ده. که والدین د صداقت، امانت، حیاء او تواضع اصولو ته ژمن وي، نو اولادونه به هم له همدې ارزښتونو سره لوی شي. که ماشوم له ماشومتوبه د اسلامي اخلاقو زده کړه وکړي، نو د فساد، فریب او بېبندوبارۍ ښکار نه شي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "هر ماشوم په فطرت (اسلام) زیږېږي، خو والدین یې یا یهودي کوي، یا نصراني، یا مجوسي." ښوونځي د اسلامي اخلاقو د پراخولو دوهم مهم مرکز دی. که تعلیمي نصاب د اسلامي ارزښتونو پر بنسټ جوړ شي، نو زدهکوونکي به د اخلاقي بحران پر ځای د اخلاقو مشعلبرداران شي. د ښوونځي چاپېریال باید د صداقت، حوصلې، او عزت اصولو ته ژمن وي، ترڅو زدهکوونکي د دروغو، خیانت او غیر اخلاقي سلوک څخه وساتل شي. ټولنه د فردي اخلاقي اصلاح لپاره وروستی مهم بنسټ دی. که ټولنه اخلاقي معیارونه وساتي، نو ناوړه دودونه، اخلاقي فساد او د غرب له لوري تپل شوي فرهنګي یرغلونه به کمزوري شي. اسلامي امارت د ټولنې د اصلاح لپاره هڅې کوي، خو هر فرد مسؤل دی چې د ټولنیز اصلاح برخه واوسي. د امر بالمعروف او نهي عن المنکر اصل هغه میکانېزم دی چې د ټولنې د اصلاح لپاره کارول کېږي. کله چې کورنۍ، ښوونځي او ټولنه یو بل سره همغږي وي، نو اخلاقي اصول په فردي او ټولنیز ژوند کې پیاوړي کېږي او د اخلاقي بحران د مخنیوي لپاره قوي بنسټونه جوړېږي.

د ځوان نسل د اصلاح لپاره عملي حللارې:

د معاصر اخلاقي بحران له امله له ټولو زیاته زیانمنه شوې طبقه ځوانان دي. د فحشاء، بېبندوبارۍ، غربي فرهنګي یرغل او د اسلامي ارزښتونو کمزوري کول ټول هغه فکري او اخلاقي ننګونې دي چې د ځوان نسل راتلونکي یې له خطر سره مخ کړې، خو که مؤثرې اسلامي حللارې تطبیق شي، دا نسل بېرته خپل اصلي اخلاقي هویت ته راګرځېدلی شي. د ایماني روزنې پیاوړتیا د ځوانانو اصلاح ته له ټولو لومړی قدم دی. که دوی له ماشومتوبه د قرآن، سنتو او د صحابهوو د اخلاقو په رڼا کې وروزل شي، نو هغوی به د مادي غوښتنو پر ځای د الله رضا ته لومړیتوب ورکړي. د اسلامي امارت تعلیمي پالیسۍ، چې د دیني ارزښتونو د احیا لپاره کار کوي، باید د ځوانانو روزنې ته ځانګړې پاملرنه ولري.

د سالمو اجتماعي فعالیتونو رواجول د اخلاقي فساد مخنیوي لپاره یو مهم عملي قدم دی. که ځوانان د سپورت، مطالعې، اسلامي روزنیزو پروګرامونو او ټولنیزو خدماتو په فعالیتونو بوخت شي، نو هغوی ته به د بېهدفه ژوند کولو وخت پاتې نه شي. د ناوړه افکارو، فحشاء او بېبندوبارۍ پر ضد اګاهي ورکول هم یو مهم اصل دی. د رسنیو، ټولنیزو شبکو او تعلیمي نصاب له لارې باید ځوانان د اخلاقي خطراتو څخه خبر کړای شي. هغوی باید د درک کړي چې د غربي تمدن ظاهري ښکلا یوازې یو فریب دی او حقیقي ازادي او عزت په اسلامي اصولو کې نغښتی دی.

د دیني علماوو، مشایخو او والدینو مسؤلیت هم مهم دی. که دوی له ځوانانو سره فعاله رابطه ولري، هغوی ته پاملرنه وکړي او د هغوی د مشکلاتو لپاره شرعي او عملي حلونه ولټوي، نو د فکري او اخلاقي انحراف مخنیوی کېدای شي. د اسلامي حکومت رول هم اساسي دی. که شرعي قوانین پلي شي، اخلاقي جرمونه کنټرول شي او د اسلامي ثقافت عاملو ته پاملرنه وشي، نو د ټولنې راتلونکی به له فساد څخه خوندي پاتې شي. اسلامي امارت د شرعي نظام د پلي کېدو له لارې د ځوانانو اصلاح ته کار کوي، خو دا مسؤلیت یوازې د حکومت نه دی، بلکې ټولنه او هر فرد باید په کې خپله ونډه واخلي.

د ټولنیزو رسنیو او تکنالوژۍ مثبت او منفي اثرات

نننی عصر د معلوماتي انقلاب دور دی، چې ټولنیزې رسنۍ او تکنالوژي یې د ټولنیز ژوند اساسي برخه ګرځېدلې ده. دا وسایل که له یوې خوا د علم، اړیکو او خبرتیا پراخوالی زیاتوي، له بلې خوا د اخلاقي فساد، فحشاء، دروغجنو تبلیغاتو او فکري یرغل وسیله هم ګرځېدلي دي. د اسلامي امارت پالیسۍ د دې مسئلې د کنټرول لپاره مهم اقدامات کړي، خو د فردي او ټولنیز هوښیارتیا اړتیا لا هم شته.

د ټولنیزو رسنیو مثبت اړخونه د علمي محتوا د خپرېدو، دیني دعوت او اسلامي ارزښتونو د عاملو لپاره یوه غوره وسیله ده. که دا وسایل د خیر لپاره وکارول شي، د مسلمانانو ترمنځ د یووالي، دیني اګاهۍ او اخلاقي اصلاح لپاره اغېزناک تمامېدای شي. دیني علما او دعوتګران کولی شي له دې فرصت څخه ګټه واخلي، د اسلامي اخلاقو، توحید او عقیدې صحیح مفاهیم عام کړي او د ځوانانو فکرونه د ګمراهۍ پر ځای سمو لارو ته سوق کړي.

خو منفي اړخونه یې ډېر خطرناک دي. د بېبندوبارۍ، دروغو، فحشاء، غیرشرعي اړیکو او اخلاقي انحرافاتو ته زمینه برابروي. د کفري ایدیالوژیو پراخ تبلیغ، د غربي ژوند بڼه ترویج او د اسلامي ارزښتونو کمزوري کول د ټولنیزو رسنیو له عمده خطرونو څخه دي. دا وسایل د ذهني استعمار یوه قوي وسیله ګرځېدلي، چې د مسلمانانو په فکر، عقیده او کلتور برید کوي.

د دې خطراتو د مخنیوي لپاره اسلامي حللارې ضروري دي. والدین باید د خپلو اولادونو انټرنېټي فعالیتونو ته پاملرنه وکړي. تعلیمي ادارې باید د اخلاقي ټکنالوژۍ کارونې مهارتونه تدریس کړي. اسلامي امارت باید د غیرشرعي او غیر اخلاقي موادو د مخنیوي لپاره قوي پالیسي ولري. هر فرد ته پکار ده چې د دې وسایلو کارولو ته د دیني اصولو له مخې وګوري، خپل وخت بېځایه مصرف نه کړي او د هر ډول ناوړه اغېزو څخه ځان وساتي. که ټولنه د دیني شعور له مخې د ټولنیزو رسنیو کارونې ته چمتو نه وي، نو دا وسایل به د اخلاقي فساد او فکري یرغل وسیله شي. د اسلامي نظام لاندې، باید د دې وسایلو مدیریت ته جدي پاملرنه وشي، څو د ټولنې اخلاقي ارزښتونه وساتل شي او نوی نسل له فحشاء، بېحیایۍ او کفري افکارو خوندي پاتې شي.

د حیا، عفت او جنسي انحرافاتو د مخنیوي اصول

حیا او عفت د اسلامي اخلاقو مهم اساسات دي، چې د ټولنې د پاکوالي، عفت او د انسان د فطرت د ساتنې لپاره ځانګړې ارزښت لري. اسلامي شریعت د فرد، کورنۍ او ټولنې د اخلاقي خوندیتوب لپاره واضحه اصول ټاکلي دي، څو د فحشاء، بېحیایۍ او اخلاقي انحرافاتو مخه ونیسي.

اسلامي احکام د نارینه او ښځینه دواړو لپاره د حیا ساتلو ځانګړې لارې ښوولې دي. د لباس، نظر، خبرو او اړیکو د کنټرول لپاره اسلامي اصول د ټولنې د اخلاقي ارزښتونو د ساتنې له ټولو مهم تدابیر دي. شریعت پر حجاب، شرعي لباس او د نامحرمو ترمنځ د شرعي حدودو مراعات باندې ټینګار کوي. سترګې ښکته کول، له ناوړه خبرو او حرکاتو ځان ساتل او د فتنې له ځایونو څخه ډډه کول د اسلامي اخلاقو اساسي اصول دي، چې د عفت او حیا ساتنې ته لار هواروي. په معاصره ټولنه کې د جنسي انحرافاتو زیاتوالی د اخلاقي بحران یوه عمده نښه ده. د فحشاء عامېدل، د نامحرمو ترمنځ آزاده اختلاط، د رسنیو له لارې غیر اخلاقي محتوا خپرول او د اسلامي حجاب له منځه وړل هغه عوامل دي، چې د ټولنې اخلاقي جوړښت ته جدي زیان رسوي. د اسلامي امارت پالیسۍ د دې ناوړو پدیدو د مخنیوي لپاره ګټورې تدابیر شوي، خو لا هم د فردي، کورنۍ او ټولنیز شعور لوړولو ته اړتیا شته. د جنسي انحرافاتو د مخنیوي لپاره د دیني تربیې پیاوړتیا، د اسلامي ارزښتونو عامول او د فحشاء د وسایلو کنټرول ضروري دي. والدین باید د خپلو اولادونو د اخلاقو روزنې ته جدي پاملرنه وکړي. ښوونځي، پوهنتونونه او دیني مراکز باید د حیا، عفت او اسلامي ارزښتونو درسونه تدریس کړي. دولت باید د فحشاء او بېبندوبارۍ د مخنیوي لپاره عملي ګامونه پورته کړي، غیر شرعي تبلیغات بند کړي او اسلامي اخلاقو ته وده ورکړي. که اسلامي ټولنه وغواړي چې خپل اخلاقي ارزښتونه وساتي، نو حیا، عفت او د شرعي حدودو مراعات باید د ټولنې د هر فرد اخلاقي مسؤلیت وګرځي. فحشاء ته د لارو بندول، د عفت ارزښتونه عامول او د اسلامي شریعت د احکامو مراعات کول هغه لارې دي، چې ټولنه له اخلاقي بحران څخه ژغوري او د یوې پاکې، عزتمندې او باثباته ټولنې جوړښت ته زمینه برابروي.

نتیجه دا شوه چې د معاصرې ټولنې اخلاقي بحران د بېعدالتیو، مادي غوښتنو او د غیراخلاقي فرهنګ د خپراوي له امله رامنځته شوی، چې د ټولنې پر بنسټیزو ارزښتونو یې ژور اغېز کړی دی. د فحشاء عامېدل، د دیني ارزښتونو کمزوری کېدل او د ځوان نسل اخلاقي بېثباتي د دې بحران عمده نښې دي، چې د کورنیو، ټولنیزو ادارو او حکومتي پالیسو بېپامي یې لامل ګرځېدلې ده.

اسلام د دې بحران د حل لپاره روښانه لارښوونې لري، چې د فرد، کورنۍ او ټولنې پر اصلاح ولاړې دي. د اسلامي اخلاقو نظام د صداقت، امانت، حیاء او د ټولنیز عدالت اصول رامنځته کوي، چې د فاسد اخلاقي حالت د بدلولو لپاره بنسټیز تدابیر دي. د کورنۍ د رول پیاوړی کول، د ښوونیز نظام اصلاح او د ټولنیزو رسنیو مناسب مدیریت هغه عملي لارې دي، چې د اخلاقي فساد مخه نیسي او د سالمې ټولنې د جوړښت سبب کېږي.

د اسلامي امارت تر حاکمیت لاندې د اخلاقي اصلاح لپاره ګټور اقدامات شوي، چې ټولنه یې د فحشاء او بېاخلاقۍ له خطرونو څخه ژغورلې ده. د حیا، عفت او اسلامي اصولو تطبیق د یوې پاکې، عزتمندې او باثباته ټولنې د جوړېدو ضمانت ورکوي. اسلامي ارزښتونه نه یوازې د فردي اخلاقو د اصلاح لپاره اړین دي، بلکې د ټولنیز نظم، سولې او سوکالۍ لپاره هم اساسي رول لري.

که ټولنه غواړي له اخلاقي بحران څخه ووځي، نو باید اسلامي اصول خپل کړي، دیني اخلاقو ته وده ورکړي او د فحشاء، بېحیایۍ او اخلاقي انحرافاتو پر وړاندې جدي مبارزه وکړي. د اسلامي اخلاقو مراعات نه یوازې اخلاقي اصلاح راولي، بلکې د یوه سالم، باثباته او باعزته نسل روزنه هم تضمینوي، چې د اسلامي امت د عظمت او پیاوړتیا سبب ګرځي.

## د انسان په...

خوږ موجود دی که څوک یې له مورسره تشدد وکړي له هغه سره یې هم حساسیت را پارېږي دا یې که پلاروي هم، ځکه په اولاد له پلار نه مور ډېره ګرانه وي.

د زماني په تېرېدو سره کله چې لوی شي نو لیدلوری یې هم پراخېږي له کورني ماحول څخه کلي کور او چاپېریال ته وځي، د خلکو په اعمال او کردارپسې سترګې نیولې وي څوک چې د ده د مرضی خلاف کار کوي د هغه له عملکرد سره یې حساسیت پیدا کېږي او په مقابل کې یې دومره حساس کېږي چې د عملکرد په تکرار یې موضوع د تعصب مرحلې ته ورسېږي.

کله چې د بلوغ مرحلې ته ورسېږي نو د خلکو له خولې او رسنیو له لارې یې ذهنیت نړیوال کېږي آن تر دې چې د هېوادونو عملکردونه هم تشخیصولی شي، نو ځکه د مثبت او منفي پېښو پر وړاندې د خپل ذهنیت په قضاوت مثبت او منفي غبرګون ښیي، ذهني جبهه نیونه یې پراخېږي او په دې عمر کې یې چې د کوم هېواد یا کوم کس له عملکرد سره حساسیت پیدا شو په تعصب بدلېږي چې دا بیا د ژوند تر وروستۍ سلګۍ ورسره ملګرې وي.

تعصب ډېر ډولونه لري ځکه هر انسان د ځانګړیو خواصو مجموعه ده او هېڅ انسان د بل له څېرې او رنګ سره شباهت او مشابهت نه لري او نه یې سل سلنه په خواصو، موصوف وي، لیدلوری هم متفاوت وي، ځیني کسان له یوه شي سره مینه لري او ځینې بیا له بل څه سره، په همدې ډول یې برداشتونه هم متفاوت وي.

دحساسیت یو ډول داسې هم دی کله چې یوڅوک داسې کس ویني چې (هم شکل) یې پخوا له ده سره بد سلوک کړی وي په فطري ډول یې په مقابل کې حساس کېږي او له څېرې یې کرکه ښکاره کوي چې دلته یو مهم اصل بل هم شته هغه داچې جانب مقابل هم له ده سره نا خود آګاه د حساسیت چوکاټ ته داخلېږي دا موضوع ډېرو نورو کسانو هم تجربه کړې، هغه څوک چې د ناآشنایي په عالم کې د چا څېره پرې ښه ونه لګېږي، نو طبیعي ده چې د ده څېره هم په جانب مقابل ښه نه لګېږي لکه چې وایي زړه په زړه آئینه دی.

د ژوندیو موجوداتو په ډله کې اهلي او وحشي حیوانات لکه پیشو، سپی چې د یو شمېر انسانانو دومره خوښېږي چې په خپلو کورونو کې یې ځای ورکړی وي او د کورنۍ د یوه غړي په توګه ترې پالنه او کوي خو برعکس یوشمېر کسان بیا له مار، لړم، غنډل او نورو داړونکو حیواناتو سره دومره کینه او حساسیت لري چې د نوم په اورېدلو یې ذهنیت ترخېږي.

د حساسیت او تعصب له وجې لوی خطرونه هغه وخت را منځ ته کېږي چې متعصب کس ته په دولت یا ټولنه کې قدرت په لاس ورشي چې په دې صورت کې خپل تعصب د هغه چا پر وړاندې په تبعیض اړوي چې مخکنی حساسیت کرکه او نفرت ورسره لري، په اشخاصو، ډلو او قومونو کې داسې موارد زښته ډېر لیدل شوي چې د تبعیضي چلن له امله یې لویې بربادۍ را منځ ته شوې وي که د نړۍ تاریخونه مطالعه شي حتي په نژادي تبعیض کې قومونه او نظامونه له منځه تللي دي.

خو تبعیض کله مثبت پایلې هم لري ځکه د جرمني صدراعظم اډولف هټلر چې کوچنی و د یهودانو د مظالمو په اړه به یې ډېرې کېسې اورېدې په ماشومتوب کې یې د هغوی له مظالمو سره حساسیت د تعصب مرحلې ته ورسېد او کله چې صدراعظم شو تعصب یې د یهودو پر ضد په تبعیض بدل شو، د ماموریت په دوران کې یې کله چې نړیواله جګړه ونښته د هغه تعصب له مخې چې هټلر له یهودانو سره درلود یهودان یې قتل عام او ټول یې د خښتو پر بټیو کې د محروکاتو په توګه وسوځل چې دا ټول د هټلر په وجود کې هغه حساسیتونه و چې د ځینو مشاهداتو او په غوږونو د اورېدلو له لارې د هغه په وجود کې پیدا شوي و.

## د ټولنیزو شبکو...

ټولنیزو شبکو په تعقیب وخت تېروي او تعلیم ترې پاتې وي او تر ډېره د ډېرو ناروغیو ښکار شوي، هغه که ژور خفګان یا ډیفریشن ناروغه ده او یا نور جسماني ناروغي دي. خو دا به ووایم چې هر څه باید تر ټاکلې اندازې پورې استعمال شي او د ټولنیزو شبکو له سالم استعمال سره باید اشنا شو تر څو مو سمه ګټه ور نه اخیستې وي او له زیان څخه مو نجات پیدا کړی وي.

## پر ښځو...

ښځې داسې حالت کې انتقال وشي چې د هغې خاوند د هغې نه راضي او خوشحاله وي نو هغه جنتي ده (ترمذي شریف)

حضرت معاذ بن جبل رضي الله تعالی عنه نه روایت دی چه رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په دنیا کې کومه یوه ښځه خپل خاوند ته تکلیف رسوي نو د جنت حوري هغې ته وایي الله پاک دې تا تباه کړي خپل خاوند ته تکلیف مه ورکوه دی خو تاسره یو څو ورځې میلمه ده او ډېر ژر ده چې د ستا نه جدا شي مونږ ته راتلونکي ده (ترمذي شریف)

حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم ارشاد وفرمایلو چې زما نه وروسته سړو لپاره به د ښځو نه لویه فتنه بله نه وي (متفق علیه)

## لوېدلي...

وي ورته ښښم یې! وروړکه هغه یې په ډېر ظلم او وحشت سره راته شهید کړ، الله پاک دې هغوی تباه او برباد کړي، رښتیا چې ډېر ظالمان وو؛ د کور سرپرست یې په نیمه شپه او پرته له کوم سند او دلیل څخه (هغه هم په خپل کور کې) د خپلو ماشومانو او ښځې ترمخ وویشت، ښځه یې تر لغتو ورته لاندې کړه او وړوکي ماشومان یې ورته وډار کړل او ویې ژړول، نو ولې به په داسې سړي د چا رحم نه راځي! یقیناً چې هغوی ډېر بې رحمه او پوره وحشیان وو.

وروره رښتیا درته وایمه! له همغې ورځې را پدېخوا مې بیا آرام خوب نه دی کړی، چې له ځان سره یوازې شمه نو همغه وحشت او همغه وېروونکې شپه را یادېږي او ځوروي مې، پر عصابو مې پوره بوج دی او داسې یې خفه کړې یمه چې اوسنی حالت مې یې له یاده ایستلی.

په سرای کې مې د هغوی له یوې عسکرې ښځې پوښتنه وکړه چې دا خو طالب نه ؤ نو ولې مو په خپل کور کې او د نازولو ماشومانو تر مخ راته شهید کړ؟ هغې وویل چې خاوند دې مړ نه دی، فقط زخمي شوی! سبا بېرته جوړېږي چورت مه ورته وهه.

- خورې د خاوند له ټولو ستر ارمان دې په دنیا کې څۀ ؤ؟

- ارمان خو یې دا ؤ چې کندو یې له اوړو ډک وي او دی له دنیا لاړ شي، خو چې کله شهید شو نو کندو مو تش ؤ، نو د دۀ همغه یوازنی ارمان هم پوره نۀ شو.

آفات قلبی...

میشود ، تولدات قبل از وقت نوزاد و محدودیت رشد داخل رحمی نوزاد میباشد . معاینات ضروری قبل از حاملگی برای مریضان قلبی توصیه میشود شامل الکتروکاردیوگرافی (ECG) بررسی بی نظمی های قلبی و سایر تغییرات الکترونیکی قلبی معاینه دیگر ایکوکاردیوگرافی است و عبارت از ارزیابی عملکرد قلب، دریچهها و ساختارهای داخلی قلب است. معاینات خون شامل بررسی سطح هیموگلوبین ، عملکرد کلیه و میزان لخته شدن خون است. تست ها و ورزش های خاص برای ارزیابی تحمل فعالیت فیزیکی در صورت نیاز و تصویر برداری یا اجرای MRI قلبی در موارد آفات پیچیده برای بررسی ساختار و عملکرد قلب میباشد. ارزیابی عملکرد ریه ها بررسی سطح اوکسیجن و تشخیص هرگونه عوارض تنفسی همراه با آفات قلبی، مشاوره با متخصص قلب و اوعیه تعیین سطح خطر حاملگی و ارائه توصیههای لازم برای وقایه از خطرات .

اختلاطات ولادی مادری و نوزادی در مریضان قلبی شامل عوارض مادر مانند بی کفایتی قلبی حاد در حین ولادت، خونریزی پس از ولادت به دلیل افزایش حجم خون و اختلالات در سیستم لخته شدن خون، داخل شدن لخته های خون و حبابات هوا در داخل جریان خون و در رگ های شش ها، افزایش خطر نیاز به ولادت سیزارین به دلیل شرایط بحرانی قلبی، بینظمی های شدید کار قلبی در حین ولادت است . اختلاطات نوزادی شامل ولادت زودرس و کم وزنی نوزاد هنگام تولد ، کمبود اوکسیجن و بی کفایتی سیستم تنفسی در نوزاد، افزایش احتمال افات مادرزادی قلبی، مرگ داخل رحمی ناشی از کمبود اوکسیجن میباشد .

ویزیتهای معمول زنان حامله سالم معمولاً ۴ تا ۶ ویزیت در طول حاملگی است ، اما مریضان قلبی نیاز به ویزیتهای بیشتری دارند که بسته به شدت بیماری آنها تنظیم میشود. ویزیت در سه ماه اول شامل ارزیابی سلامت عمومی، معاینات قلبی، بررسی فشار خون و انجام معاینات اساسی مانند الکتروکاردیوگرافی و ایکوکاردیوگرافی است . ویزیتهای سه ماه دوم شامل کنترول رشد جنین، بررسی میزان و مقدار خون قلبی و سطح اوکسیجن، تنظیم ادویه ها و بررسی احتمال بی کفایتی قلبی است . ویزیتهای سه ماه سوم پایش دقیق سلامت مادر و جنین، بررسی خطرات ولادت ، مشاوره برای انتخاب نوع ولادت (طبیعی یا سزارین) ویزیتهای هفتگی در ماه آخر حاملگی ضروری است،که شاملکنترول دقیق وضعیت قلبی مادر و تعیین برنامه برای ولادت مناسب و بی خطر میشود . استراحت کافی ، محدود ساختن فعالیت های فزیکی ، محدود ساختن گرفتن نمک در غذا و هم مریض باید تحت نظر داکتر متخصص قلبی و ولادی قرار داشته باشد.

مدیریت و تداوی شامل ارزیابی پیش از حاملگی کنترول دوایی پایش دقیق حاملگی برنامهریزی برای ولادت است .

پیشگیری از حاملگی در زنان مبتلا به امراض قلبی شدید، نقش مهمی در کاهش خطرات و عوارض مرتبط با حاملگی دارد. روشهای مناسب پیشگیری از حاملگی در این مریضان عبارتاند از: تطبیق (IUD) دستگاه داخل رحمی غیرهورمونی گزینهای مطمئن برای مریضان قلبی محسوب میشود، قرصهای پروجستیرونی روش مناسب برای مریضانی که نمیتوانند استروژن مصرف کنند است، روشهای دائمی (بستن تیوب های رحمی یا وازکتومی برای مردان) برای مریضانی که حاملگی برای آنها خطر جانی دارد، گزینه قطعی محسوب میشود.

در نتیجه تشخیص زودهنگام، مدیریت صحیح و مراقبتهای دقیق میتواند خطرات را کاهش داده و نتایج بهتری برای مادر و جنین فراهم سازد. زنان مبتلا به امراض شدید قلبی باید قبل از تصمیم به حاملگی با متخصصین قلبی مشورت کنند تا خطرات احتمالی بررسی شده و تصمیم مناسبی اتخاذ شود. ارایه مشوره و ارزیابی فکتور های خطر برای اخذ تصمیم آگاهانه در حمل، توصیه های مناسب برای وقایه از حمل، معلومات کافی و ارزیابی دقیق تغیرات نورمال حمل، چون ممکن است بعضاً این تغییرات که در اکثر حالات بخوبی قابل تحمل میباشند در نزد یکتعداد مریضان باعث تغییرا ت جبران ناپذیر گردد .

تداوی مناسب نزد خانم های حامله مانند خانم های غیر حامله است که شامل محدود ساختن و کاهش فعالیت های فزیولوژیک مادر ، توجه و مراقبت های جدی جنین ، در نظر داشتن و توجه زیاد به اثرات و عوارض مادری و اثرات ادویه ها میباشد . تمام خانم های حامله و مریضانی که اخیراً ولادت کرده اند و آفات ولادی قلب نزد شان موجود است، باید بطور مناسب مراقبت شده و با متخصص داخله، قلبی در ارتباط نزدیک و مستقیم قرار داشته باشند .

## د راتلونکي نسل...

یو متوازن، علمي، اخلاقي او ټولنیز روزنیز سیستم کولی شي، ټولنه د اصلاح او پرمختګ په لور بوزي. ښوونکي، د مدارسو مسئولین، دولت، والدین او د ټولنې مشران باید دا حقیقت درک کړي، چې د نن ورځې زدهکوونکي د سبا ورځې مشران دي او که موږ هغوی ته سالمه روزنه ورنه کړو، نو سبا به له داسې نسل سره مخ یو چې د ټولنې د سمون پرځای به د هغې د سقوط لامل وګرځي.

هیواد

پنجشنبه د رمضان المبارک ۱۳مه ۱۴۴٦ ق کال | د کب ۲۳مه ۱۴۰۳ ل کال | د مارچ ۱۳ مه ۲۰۲۵ م کال | خصوصي ګڼه ۵٦۷مه | پرله‌پسې ګڼه ٦۵۷مه، اتمه دوره



# افغان اعلانات

### اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت افغان اسپنتا میخواهد گدام آسیاب نمبر دوم، یک باب هنگر ،اطاق کارگران، اطاق دفترو اطاق ترازو ملکیت شرکت امارتی سیلوی مرکز که به مساحت مجموعی (۵۵۱،۳۲) متر مربع میشود ماهوار به افزودی (۲۰٪) بالای کرایه قبلی مبلغ (۴۸۰۰۰) افغانی برای مدت سه سال به کرایه بگیرد.

شرکت های خصوصی، ادارات امارتی، و موسسات که خواهش گرفتن آنرا بالاتر از مبلغ متذکره را داشته باشند درخواست های خویش را از نشر اعلان به مدت ۲۱ روز به مدیریت تولیدات و قرار داد های آمریت پلان و انکشاف تجارتی سیلو بسپارند ،شرطنامه را اخذ و بروز داوطلبی حاضر در مجلس گردند.۹۷٦۰

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم زمری فرزند کلام خان یک عراده موتر پلیت ۳۱۹۱۸ بس کابل نوع بنز بس جرمنی ۵۸۰ خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالوحید فرزند عبدالنبی بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷٦۵

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم نثار الدین فرزند آقامحمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۵۴

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه سند ملکیت زمین که دارای ۹ بسوه می باشد واقع ساحه ده سبز شهرک نو کابل مربوط شرکت ساختمانی خاور به اسم حماسه بنت نور آغا مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷٦۹

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد کتابچه صفایی مربوط خانه واقع ناحیه اول به اسم محمد نسیم فرزند محمد عظیم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۵۸

### اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

دفتر رهنمای معاملات صداقت قرصوب دارنده جواز شماره (٦۱۹٦) به اسم محترم فرهاد فرزند سراج الدین واقع ایستگاه بیست متره سرک برچی ناحیه ۱۳ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک قلعه قاضی ناحیه ۱۳ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۷٦۳

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه مکتوب گمرکی موترسایکل زرنج دارای نمبر ۴۷۹۸ به اسم شهامت لمتید مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۵۵

### اعلان داوطلبی

ریاست ارشاد حج اوقاف ولایت لوگر بخاطر تامین برق مارکیت مدینه یک پایه کمپکت ترانسفارمر نصب مینمایند.

اشخاص شرکت های و موسسات دولتی می تواند از تاریخ نشر اعلان هفت روز جهت اخذ آفر به مدیریت محاسبه ریاست ارشاد حج اوقاف ولایت لوگر مراجعه نمایند شرطنامه را اخذ کرده می توانند تضمین اخذ میگردد.۹۷۷۵

### عنوان: در رابطه به اعلان پروسه لیلام تعداد 274 قلم اجناس داغمه جات:

وزارت فواید عامه در نظر دارد به تعداد 274 قلم اجناس داغمه جات خویش را در معرض لیلام قرار دهد. بناً از تمام شرکت ها، افراد و اشخاص حقیقی و حقوقی که خواهش اشتراک در پروسه داوطلبی را داشته باشند میتوانند بتاریخ 1403/12/26 ساعت 9:00 قبل از ظهر به ریاست اداری و خدمات وزارت فواید عامه واقع شهرنو سرک وزارت داخله اسبق جوار پسته خانه شهرنو حضوربه هم رسانند. همچنان 15% فیصد تضمین ازمجموعی قیمت تخمینی داغمه جات قبل از آغاز داوطلبی نقداً اخذ می گردد.

جهت معلومات مزید حسب ضرورت علاقه مندان محترم میتوانند به شماره های ذیل تماس حاصل نمایند.

0782542636. – 0784658468. - 0202526467

نوت: درصورتیکه تاریخ (1403/12/26 سال جاری بطور غیر مترقبه از طرف حکومت رخصتی اعلان گردد جلسه آفرگشایی پروژه متذکره روز بعدکاری در همان ساعت و مکان مندرج مکتوب هذا برگزار میگردد.

### د کابل ښار (۵) مې ناحیې اړوند په کوټه سنګي کې د نظیف مارکېټ د (۳) بابه دوکانونو د داوطلبۍ خبرتیا!

د مالیې وزارت د دولتي املاکو لوی ریاست غواړي چې د کابل ښار (۵) مې ناحیې اړوند په کوټه سنګي کې د نظیف مارکیټ(۳) بابه دوکانونه په جلا جلا ډول د داوطلبۍ له لارې د یو کال لپاره اعلان ته وړاندې کوي.

- په کوټه سنګي کې د نظیف مارکېټ یو باب (39-A-40) نمبر دوکان چې (۳٦) متره مربع مساحت لري او میاشتنۍ ابتدایي کرایه ئي (۸۰۰۰) افغانۍ ده.
- په کوټه سنګي کې د نظیف مارکېټ په دوهم پوړ کې یو باب (A-122) نمبر دوکان چې (۱۵) متره مربع مساحت لري او میاشتنۍ ابتدایي کرایه ئي (۴۵۰۰) افغانۍ ده.
- په کوټه سنګي کې د نظیف مارکېټ یو باب (A-118) نمبر دوکان چې (۱۵) متره مربع مساحت لري او میاشتنۍ ابتدایي کرایه ئي (۴۵۰۰) افغانۍ ده.

د جي پي اس کوردینات: 69.11746-34.515272

ټول هغه حقیقي او حکمي اشخاص چې غواړي پورته ذکر سوي دوکانونه په کرایه ونیسي کولای سي چې خپل غوښتنلیکونه د (۱۴۰۳/ کب/ ۲۳ نېټې څخه د ۱۴۰۴/حمل/٦) نېټې پورې د مالیې وزارت د دولتي املاکو لوی ریاست ته وسپاري او شرطپاڼه دې تر لاسه کړي.

آدرس: د سینما پامیر (۱۴) پوړیزه ودانۍ، (۵) پوړ، د مرکزي ټرونونو د ارزوني لوی مدیریت.

د داوطلبۍ نېټه: د (۱۴۰۴/ حمل/ ۷) نېټه، له غرمې مخکې د سهار 10:00 بجې

د اړیکو شمېرې: 0202924607-0202924624

### د جهادي تاریخ...

موزیم جوړ شوی، چې هلته ارزښتناک اثار انقلابېږي، که اسناد وي، په رسمي آرشیف کې خوندي کېږي او که داسې آثار وي، چې د کتابتون برخه جوړولی شي، نو په ځانګړي کتابتون کې ځای پر ځای کېږي، د شهیدانو د سوانحو د راټولولو چارې هم په مرکز او ولایتونو کې په منظمه توګه رواني دي، تر څو د دوی تاریخ، قرباني او مبارزې مستندې او راتلونکو نسلونو ته انتقال شي.

د زندانونو چارو د سمون اداري مرستیال محمد کاظم طارق د یادو هڅو ستاینه کړې او د همکارۍ ډاډ یې ورکړی. نوموړي ویلي؛ په زندانونو کې د بندیانو فکري، تاریخي او علمي اثارو ته پاملرنه کوي او چمتو دي، چې دا ډول مواد راټول او مستند کړي او د جهادي ارزښتونو لوی ریاست سره په یاده برخه کې همکاري وکړي. په پای کې دواړو لوریو د لا ډېرو همکاریو پر اړتیا ټینګار کړی، تر څو د جهادي تاریخ او ارزښتونو د ساتنې لړۍ لا پیاوړې شي.

### افغانستان یو...

په ملګرو ملتونو کې د پاکستان د استازي او نورو لوریو څرګندونې عقدهمندانه بللي او ویلي یې دي، چې افغانستان یو امن هېواد دي او هېڅ خپلسري فعالیت ته پکې اجازه نه ورکول کېږي. د اسلامي امارت مرستیال ویاند یو ځل بیا ټینګار کړی، چې افغانستان یو امن هېواد دی، یو واحد نظام پکې حاکم دی او ټوله جغرافیه د اسلامي امارت تر کنټرول لاندې ده. ملا حمدالله فطرت ډاډ وکړی، چې هېڅ ډول خپلسري ځوک دلته نشته او نه د فعالیت اجازه لري. نوموړي یو ځل بیا له ملګرو ملتونو غوښتي، چې د افغانستان ځوکۍ ومني او د افغانانو حق ورکړي، تر څو په داسې ناستو کې سم قضاوت وشي او د عقدوي اړخونو پروپاګند ته زمینه برابره نه شي.

### ایراني شرکتونه د...

شرکتونو د ټولګې د لېوالتیا هرکلی کړی او یادونه یې کړې، غوره ده چې د دواړو لورو د تخنیکي مسئولینو ترمنځ تخنیکي ناستې ترسره شي، ترڅو د پروژې د تشخیصولو، د پانګونې د څرنګوالي او نورو اړینو همغږیو په هکله هوکړې ته ورسېږي او له هغه وروسته، وروستۍ کړنې له یو بل سره په هوکړه تر لاس لاندې ونیول شي. دغه راز د افغانستان برښنا شرکت عمومي اجرائیوي رئیس ډاکټر عبدالباري عمر د ایران ترانسفو شرکت او TME الماني شرکت استازو سره د برښنا سکتور د ودې او پراختیا په برخه کې د ګډو همکاریو په تړاو لیدنه کړې. په دې لیدنه کې د ایران ترانسفو شرکت د صادراتو د برخې مشاور ډاکټر رحیمي د ترانسفارمرونو، ډیجیټل سازۍ، نوې کېدونکي انرژۍ او برښنا سکټور په بېلابېلو برخو کې د ګډو همکاریو په تړاو لېوالتیا ښودلې او د ایران ترانسفو شرکت د فعالیتونو په تړاو یې وضاحت ورکړی .په ورته مهال د الماني شرکت TME استازي عصمت اکبري د افغانستان برښنا شرکت سره د برښنایي تجهیزاتو د عارضو، سبستیشنونو، د شبکې د پراختیا او ګڼو تخنیکي برخو کې د همکاریو د چمتووالي یادونه کړې. ډاکټر عبدالباري عمر د یادو شرکتونو مسئولینو او استازو ته د ښه راغلاست ترڅنګ ویلي: د افغانستان برښنا شرکت د یوه ملي او پیاوړي شرکت په توګه چمتو دي، چې د برښنا ملي شبکې د پراختیا په برخه کې له کورنیو او بهرنیو پانګوالو سره همکاري وکړي. نوموړي همدارنګه د افغانستان برښنا شرکت کې د پانګونې د فرصتونو او ملاتړ په تړاو معلومات شریک کړي او د یادو شرکتونو د استازو او د افغانستان برښنا شرکت د تخنیکي غړو ترمنځ د ګډو همغږي کوونکو ناستو یادونه یې کړې.

### د ریشخورو...

کې به د هېواد په څلورو زونونو کې د لبنیاتو د پروسس فابریکي جوړې کړي. د ریشخورو د لبنیاتو فابریکه په یو وخت کې د ۴۰ لیتره او په ۲۴ ساعتونو کې د ۱۰۰زره لېترو شیدو د پروسس ظرفیت لري چې تر ۱۲ ډوله لبني محصولات تولیدیږي. یاده دې وي چې دا فابریکه د ۱۰ کلونو لپاره د میلکو شرکت ته په قرارداد ورکړ شوې ده.

### سړکال ۳. ۵۱۸۸۲ قیراطه...

د پنجشېر زمرد د افغانستان د اقتصاد د بقا لپاره حیاتي ارزښت لري، ځکه چې د دې ارزښتمن منرال پلورل پر افغان سوداګرو او د دوی له لارې پر نړیوالو سوداګرو د پنجشېر زمردو ته ارزښت ور کوي او بېرته یې د منرالونو له لارې بهرنۍ پیسې د افغان سوداګرو لاس ته ورځي چې همدې چارې د هېواد اقتصاد ته ځانګړي ارزښت ور کړې دي او ور کوي یې. د امیري په وینا: د راتلونکي کال لپاره مو هم ځانګړې برنامې په نظر کې نیولې دي چې له مخې به یې لا د افغان سوداګرو د پنجشېر د زمردو د پېر لپاره ملاتړ وشي، د معدن اېستونکو لپاره به سهولتونه رامنځته شي او ورته به د معدنونو د اېستلو جواز لیکونه ورکول کېږي، د قاچاق مخه به یې نیول کېږي، د غیر قانوني اېستلو مخه نیول او په قانوني توګه اېستلو ته زمینه برابرول هم مهم دي تر څو په کور دننه له دې لارې په کورنیو عوایدو کې زیاتوالي راشي.

زیارمل هوتک

### خوست کې د یوې...

د ۴۰۰ متره په اوږدوالي د ویالو جوړولو چارې شاملې دي.

د نوموړي په وینا په دغې پروژه کې به د سیمې یو شمېر اوسېدونکو ته د کار زمینه هم برابره شي.

د سیمې اوسېدونکو د یادې پروژې په پلي کېدو خوښي ښودلې او په راتلونکي کې یې له دولت څخه د ورته نورو پروژو د پلي کېدو غوښتنه کړې ده.

### غور کې مخابراتي...

مخابراتي او انټرنېټي فعالیتونو پراخول دي. د ویلو وړ ده، چې د دغو ۳۵ نویو سایټونو په فعالېدو سره به د غور ولایت نږدې ٦۰ سلنه خلک له مخابراتي او انټرنېټي خدمتونو څخه برخمن شي.

### له بشرپالو...

هېوادونو سره بشري او پرمختیایي مرستې کوي او په ډېرو نړیوالو پروژو کې یې رغنده رول لوبولی دي.

### هرڅه چې...

رویټرز خبري اژانس راپور ورکړی، چې له دې مخکې د ایران مذهبي مشر، ایتالله علي خامنهيي، هم وروسته له هغې چې ټرمپ ورته لیک استولی و، ویلي و، چې تهران له واشنګټن سره د مذاکراتو وړاندیز ردوي.

### ۲ هندي سوداګرو...

چې د پنجشیر ولایتي اداري له کورنیو او بهرنیو پانګوالو سره هر ډول همکارۍ ته چمتو دي. ده ټینګار کړی، چې د پنجشیر سیمهییزه امارتي اداره به په دې ولایت کې د پانګونې لپاره د هر هغه پانګوال بشپړ ملاتړ وکړي چې پانګونه کوي. د هند حکومت په دې وروستیو کې له اسلامي امارت سره خپلې اړیکې زیاتې کړې دي. دا هېواد پلان لري چې په ډېلي کې د افغانستان سفارت د اسلامي امارت استازو ته وسپاري او د افغانستان د سرپرست حکومت ځینې ډیپلوماتان یې هم منلي دي.

### د ګرځندوی او هوټلدارۍ...

کسان په دې برخه کې فعالیت وکړي. په همدې موخه اسلامي امارت د ګرځندوي او هوټلدارۍ د مسلکي کدرونو د روزنې لپاره نیمه عالي انستیتیوت جوړ کړي او په کابل پوهنتون کې یې د ګرځندوي او هوټلدارۍ ځانګړي ډیپارټمنټ هم رامنځته کړي دي.پرون د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت اړوند د ګرځندوي او هوټلدارۍ نیمه عالي انستیتیوت د ۱۰۰ زدهکوونکو د جذب په موخه ازموینه واخیستل شوه. د ګرځندوي او هوټلدارۍ انستیتیوت آمر ښاغلي حقپرست، ګډونکوونکو ته په خپله وینا کې وویل، چې دلته د یو بدلون په نیت راشئ، که ځانونه بدل کړئ، نو ټولنې ته هم بدلون ورکولي شئ، که په ښه نیت تعلیم وکړئ، دوه ګټې به وکړئ: یو دا چې الله تعالي به اجر درکړي او بل دا چې د ملت ظرفیت به لوړ شي او تأسې به ټولنې ته په ډېکو لاسونو ور ستانه شئ. د دغه انستیتیوت یو استاد محمد ذکي رحیمپور وویل چې د ګرځندوي برخه له تاریخه مخکې دورې څخه پیل شوې، خو اوس یې عصري دور ته داخل شوي یو. ده زیاته کړه چې افغانستان له دغې برخې څخه کولی شي اقتصادي پراختیا ته وده ورکړي او ملي عواید لوړ کړي. ښاغلي رحیمپور د ګرځندوي د ودې په لاره کې لوي خنډونه د ترانسپورت، هوټلدارۍ او د مسلکي اشخاصو تیټه کچه وبلله. ده وویل: سره له دې چې د تېر کال په پرتله سږکال ګرځندوي ٦۰ سلنه وده کړې، خو لا هم ډېر شرکتونه یوازې افغانان بهر ته لېږدوي او ګټه یې بهرنیو هېوادونو ته رسېږي. محمد رفیع صدیقي، چې په دغې ازموینه کې یې ګډون کړي و، امارتي ورځپاڼو ته وویل، چې دغې برخې ته د راتګ یوازیني لامل د افغانستان ضعیف اقتصاد دي، چې باید پر خپلو پښو ودرېږي. زه د اوسني امنیتي وضعیت په اړه خوشبین یم او باور لرم چې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت دا ډول ګامونه به په راتلونکي کې ډېره مثبته اغېزه ولري. ښاغلي صدیقي له حکومته غوښتنه وکړه چې زدهکړیالانو ته د لیلیې، ترانسپورت او قرطاسیې په برخو کې لازمې اسانتیاوې برابرې کړي، ځکه چې ډېر زدهکوونکي له لرې ولایتونو څخه راځي او د زدهکړو په برخه کې له ستونزو سره مخ دي. تاج محمد بهار

/***

### ارزګان کې د یوه پله...

د یادونې وړ ده، چې د دغه پل د سیمې د اوسېدونکو لپاره حیاتي ارزښت لري او په جوړېدو سره به یې د تګ راتګ ستونزې هواري شي.

### پروان کې...

سرچینې زیاته کړې، چې د دغه سړک په جوړېدو سره به د اړوندې سیمې د ۲۰۰ کورنیو د تګ راتګ ستونزې حل او چارې به یې په دوو اوونیو کې بشپړې شي. د سیمې اوسېدونکو د دې پروژې د پیل هرکلي کړي او ویلي یې دي چې د دغه سړک په جوړېدو سره به ورته د کار زمینه برابره او د دوي د تګ راتګ شته ستونزې به حل شي.

### د څه باندې...

د معلوماتو له مخې، له یادو همکاریو به ۳۷ زره ۷۱۸ بېځایه شوي، راستانه شوي، د کوربه ټولنې غړي او ۸٦۰ کورنۍ ګټه واخلي. د یادونې وړ ده، چې دا هوکړهلیکونه د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت د مسلکي مرستیال مولوي عبدالرحمن راشد او د دغو مؤسسو د استازو له لوري لاسلیک شول.

### غزه کې ...

تر ویجاړیو او خاورو لاندې ورک زرګونه فلسطینیان هم شهیدان دي. سربېره پر دې د اسرائیلو رژیم له تېرو څو ورځو راهیسې غزې ته د بشري مرستو د داخلېدو مخه نیولې او د دې تړانګې برښنا یې هم پرې کړې ده. ملګرو ملتونو او بشري سازمانونو له اسرائیلو غوښتي، تر څو غزې ته د ټولو بشري مرستو د لېږد مخنیوي پای ته ورسوي. هممهاله حماس اسلامي غورځنګ ویلي، چې له اسرائیلو سره به د اوربند د خبرو نوي پړاو پیل شي. په منځني ختیځ کې د امریکا استازي سټیو ویټکاف د قطر پلازمېنې دوحې ته رسېدلي، تر څو غزه کې د اوربند په تړاو خبرې پیل کړي.

### یو شمېر ولایتونو ...

زیاتوي: په دې بهیر کې د ښاروالیو له خوا ټاکل شوي نرخونه څارل شوي او د سود، احتکار او قیمت پلورنې مخنیوي ترسره شوي دي. د یادونې وړ ده، چې دا کمپاین به تر هغې دوام ومومي، چې په بازارونو کې د بېعدالتیو مخنیوی وشي او پر اسلامي ارزښتونو سمبال اقتصادي چاپېریال رامنځته او بازارونو کې شته ستونزې حل شي.

د امر بالمعروف، نهې عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت تل د یو سالم او په اسلامي ارزښتونو د سمبال اقتصادي چاپېریال د رامځته کولو لپاره هڅې کړي او یادې هڅې به په بشپړ جدیت دوام ولري.

### د اسلامي نړۍ...

اسلامي امت عزت بېرته را ژوندی شي، د لوېدیځ د استثمار نظام له منځه یووړل شي، مسلمانان له فکري غلامۍ خلاص شي، د اسلامي اقتصاد، سیاست، فرهنګ او پوهنې بنسټونه پیاوړي شي، د اسلامي هېوادونو ترمنځ قوي سیاسي، اقتصادي، نظامي او تعلیمي همغږي رامنځته شي او د لوېدیځ له خوا په لوی لاس د اسلامي نړۍ ترمنځ جوړ شوي اختلافات ختم شي، ځکه دښمن د قومیت، ژبې، جغرافیې، سیاست او اقتصاد پر بنسټ مسلمانان سره وېشلي، د هغوی ځواک یې کمزوری کړی، فکري یرغل یې وربانـدې کړی او د اسلامي نظام د راتګ مخنیوي ته یې پراخ تبلیغات پیل کړي، نو که ځوان نسل سیاسي بصیرت ولري، پوه شي چې لوېدیځ څنګه د رسنیو، نصاب، سیاست، اقتصاد او استخباراتو له لارې اسلامي امت ته ضربه ورکوي، نو هغه مهال به د امت د خپلواکۍ، عزت او ځواک بېرته ترلاسه کولو لپاره جدي ګامونه پورته کړي، ځکه چې که د رسول الله ﷺ، خلفای راشدینو، اسلامي فاتحینو او د اسلامي تمدن زرینه دوره مطالعه شي، نو دا روښانه کېږي، چې اسلامي سیاست یوازې نظري مفاهیم نه دي، بلکې دا یو عملي نظام دی، چې عدالت، قوت، اقتصاد، نظامي ځواک، علمي پرمختګ، اخلاقي لوړتیا او ټولنیز نظم لري، خو دا هغه وخت ممکن دی، چې ځوان نسل د کفري دسیسو پر وړاندې ویښ، سیاسي شعور لرونکی، د اسلامي سیاست اصولو ته ژمن، د اسلامي نظام د پلي کولو لپاره تیار، د اسلامي وحدت لپاره کوښښ کوونکی، د اقتصادي خپلواکۍ لپاره مبارزه کوونکی، د اسلامي تعلیم د خپرېدو لپاره کارکوونکی، د دښمن د رسنیزو او فکري یرغلونو پر ضد مبارز او د اسلامي ارزښتونو د ساتنې لپاره قوي او متعهد وي، ځکه لوېدیځ هڅه کوي، چې د مسلمانانو عقاید، سیاست، اقتصاد، ټولنه، اخلاق، تعلیم، کلتور، پوهنیز نظام او د ژوند ټولې برخې تر خپل نفوذ لاندې راولي، نو که ځوان نسل د دې هر څه پر وړاندې سیاسي شعور ولري، د اسلامي سیاست اصول زده کړي، د اسلامي امت د پیاوړتیا لپاره مبارزه وکړي، د خپلواک اسلامي نظام د جوړېدو لپاره کار وکړي، د لوېدیځ مداخلو ته تسلیم نه شي، د اسلامي اقتصاد د ودې لپاره هلې ځلې وکړي، د کفري یرغلونو پر وړاندې د مقاومت فکر خپور کړي او د اسلامي امت د یووالي لپاره هڅه وکړي، نو هغه ورځ به راشي، چې اسلامي امت به بیا خپل له لاسه وتلی عزت، واک، قوت او خپلواکي ترلاسه کړي، او الله تعالی دې اسلامي ځوانانو ته د دې ستر هدف لپاره بصیرت، حکمت، اخلاص، قوت او استقامت ورکړي!

په پایله کې د اسلامي نړۍ د زوال یو اساسي لامل د ځوان نسل د سیاسي شعور کمښت، د کفري قوتونو دسیسې، فکري استعمار، اقتصادي غلامي او د اسلامي ارزښتونو پر ضد روان فرهنګي یرغلونه دي، ځکه لوېدیځ د مسلمانانو سیاسي بېخبرۍ ته کار کړی، د هغوی ترمنځ قومي، سمتي او ژبني اختلافات یې زیات کړي، د اسلامي نظام مفهوم یې تحریف کړی، د جهاد تصور یې بدل کړی او د مسلمانانو ترمنځ یې د تعلیم، اقتصاد، سیاست او ټولنیزو اړیکو په برخو کې داسې جال غوړولی، چې له خپل دین، هویت او سیاسي اصولو څخه لرې پاتې شي، خو که ځوانان د دې ټولو دسیسو پر وړاندې ویښ شي، د اسلامي سیاست اصول زده کړي، د رسول الله ﷺ سیرت، د خلفای راشدینو نظام، د اسلامي تمدن زرینه دوره، د اسلامي اقتصاد اصول، د کفري قوتونو د سیاسي چلن تحلیل او د اسلامي وحدت اړتیا درک کړي، نو هغه ورځ به راشي، چې اسلامي امت به یو ځل بیا خپل له لاسه وتلی عزت، واک، ځواک، او خپلواکي ترلاسه کړي، ځکه که اسلامي ځوانان د اسلامي سیاست، اقتصاد، تعلیم او ټولنیز نظم د احیا لپاره کار وکړي، د کفري نظامونو پر وړاندې سیاسي شعور لوړ کړي، د دښمن دسیسې شنډې کړي او د اسلام د یووالي لپاره مبارزه وکړي، نو د لوېدیځ له استعمار څخه د اسلامي امت خلاصون حتمي دی، ځکه اسلام یوازې د عباداتو دین نه دی، بلکې دا یو بشپړ سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او حقوقي نظام دی، چې د ژوند ټول اړخونه تنظیموي او که دا نظام د ځوان نسل په وسیله بېرته را ژوندی شي، نو نه یوازې د اسلامي نړۍ ټولې ستونزې به حل شي، بلکې د کفري قوتونو سیاسي، اقتصادي او فکري تسلط به له منځه لاړ شي او اسلامي امت به د خپلواکۍ، عدالت، عزت، قوت، پرمختګ او یووالي پر لور روان شي، نو د اسلامي ځوانانو ستر مسؤلیت دا دی، چې د فکري غلامۍ زنځیرونه مات کړي، د اسلامي امت د عزت لپاره کار وکړي، د خپل دین سیاسي شعور ته متوجه شي، د اسلامي سیاست د تطبیق لپاره عملي ګامونه واخلي او د اسلامي خلافت د بیا حاکمیت لپاره مبارزه وکړي، ترڅو هغه ورځ راشي، چې اسلام د ټولې نړۍ لپاره د عدل، قوت او سوکالۍ نظام شي او دا یوازې هغه وخت ممکنه ده، چې اسلامي ځوانان د کفري یرغل پر وړاندې ویښ شي، خپل مسؤلیت درک کړي، د اسلامي سیاست د احیا لپاره متعهد شي، د امت د یووالي لپاره هلې ځلې وکړي او د کفري استثمار، اقتصادي استعمار، فکري یرغل او سیاسي دسیسو مخنیوی وکړي، نو الله تعالی دې اسلامي ځوانانو ته بصیرت، حکمت، قوت، اخلاص او استقامت ورکړي، ترڅو د اسلام حاکمیت بېرته را ژوندی شي، اسلامي امت له ذلت څخه عزت ته، له ضعف څخه قوت ته، له غلامۍ څخه خپلواکۍ ته، او له تفرقې څخه یووالي ته لاړ شي، ځکه د اسلامي امت عزت، قدرت، خپلواکي، اقتصاد او سیاست یوازې هغه مهال بېرته ترلاسه کېدای شي، چې د اسلامي ځوانانو سیاسي شعور راویښ شي او د اسلامي نظام د احیا لپاره کار وکړي، نو الله تعالی دې د اسلام ځوانانو ته توفیق ورکړي، چې د اسلام د حاکمیت د بیا راتګ لپاره متعهد پاتې شي، ترڅو د اسلامي امت عزت بېرته را ژوندی شي!

Hewad Daily

پنجشنبه د رمضان المبارک ۱۳مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۲۳مه د 2025 م کال د مارچ 13مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱
دیزاینر: احمد رومان(عظیمی)

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: ۲۵۲٦۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼي انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانگه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳

### د اقتصاد وزارت:

# له بشرپالو پروگرامونو باید سیاسي گټه وانه خیستل شي




د اقتصاد وزارت ویلي، چې د امریکا د پراختیایي اداري د ۸۳ سلنه بودجې لغوه کول به ارمنو ته پر مرستو رسولو منفي اغېزې وکړي. د دغه وزارت ویاند، عبدالرحمن حبیب ټینگار کړی، چې له بشر پالو پروگرامونو باید سیاسي گټه وانه خیستل شي. دا په داسې حال کې ده، چې هره ورځ د بېلابېلو بنسټونو له لوري د افغانستان د بېوزلۍ او اقلیمي بدلونونو په تړاو څرگندونې کېږي. د امریکا د نړیوالي پراختیا اداره له ۶۳ کلونو راهیسي له نورو...۷مخ

### د ایران ولسمشر ټرمپ ته:

## هرڅه چې غواړې ویې کړه



د ایران ولسمشر مسعود پزشکیان ویلي: ایران به له امریکا سره تر هغې مذاکرات و نه کړي ،چې تر گواښ لاندې وي. مسعود پزشکیان خپل امریکایي سیال، ډونالډ ترمپ ته د گواښ په ژبه ویلي: ((هر څه چې غواړې، و یې کړه)) هغه ویلي: ((دا زموږ لپاره د منلو نه ده چې امریکا حکمونه راکوي او گواښونه کوي. ده ویلي: دوی به له امریکا سره مذاکرات هم ونه کړي. ..۷مخ

## ۲ هندي سوداگرو پنجشیر کې د کانونو د استخراج طرحه وړاندې کړې



د پنجشیر ولایت مسئولین وایي، چې دوو هندي سوداگرو، د پنجشیر د زمردو د پلورلو په داوطلبی کې د گډون پر مهال، د دې ولایت د کانونو د استخراج طرحه وړاندې کړې ده. د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنگ ریاست پرون ویلي ،چې د پنجشیر والي محمد اغا حکیم د هندي سوداگرو د طرحې هرکلی کړی او په دې برخه کې یې د همکارۍ خبره کړې ده. بله خوا د هند د قیمتي ډبرو سوداگر (( دیوی یاجوا سنجې)) په افغانستان کې د پانگونې له فرصتونو هرکلی کړی او دلته یې سرتاسري امنیت ستایلی دی. ده زیاته کړې چې د نورو هندي شرکتونو مالکین به هم وهڅول شي چې په افغانستان کې پانگونه وکړي. بله خوا د پنجشیر والي د دې طرحې هرکلی کړی او ډاډ یې ورکړی...۷مخ

## د گرځندوی او هوټلدارۍ انسټیټوټ د راتلونکي کال د محصلینو د جذب ازموینه واخیستل شوه



افغانستان یو له هغو هېوادونو څخه دی چې د ښکلو منظرو، تاریخي آبداتو، طبیعي ښکلاوو او کلتوري شتمنیو په لرلو سره د گرځندوي په برخه کې ډېرې بډایې سرچینې لري. دغه هېواد د خپل جغرافیوي موقعیت له امله ځانگړې اهمیت لري او کولای شي د سیمه‌ییزو او نړیوالو سیلانیانو پام ځان ته راواړوي. نن ورځ گرځندوي د نړۍ په کچه د عوایدو یوه ستره سرچینه بلل کېږي او گڼ هېوادونه له همدې لارې اقتصادي پرمختگ او د کار فرصتونه رامنځته کوي. دسیاحت له لارې نه یوازې اقتصادي وده ترلاسه کېږي، بلکې د کلتوري پیوستون او نړیوالو اړیکو پراختیا ته هم زمینه برابروي. د گرځندوي د ودې او پرمختگ لپاره اړینه ده چې مسلکي او روزل شوي ...۷مخ

### ارزگان کې د یوه پله د بیارغولو چارې پیل شوې

د ارزگان ځایي مسئولین وایي چې د یاد ولایت په دهراود ولسوالۍ کې د یوه پله د بیا رغولو چارې پیل شوې دي. د ارزگان د والي مولوي عنایت الله شجاع په لارښوونه او د ولایت د مقام په مالي ملاتړ د شاوخوا یو میلیون افغانیو په لگښت د څلورمې پلې رواحه لوا پر ماشینرۍ د یاد ولایت په دهراود ولسوالۍ کې د وروستیو سېلابونو له امله د یوه ویجاړ شوي پله د بیا رغولو چارې پیل شوې دي...۷مخ

## غزه کې د اسرائیلي یرغلگرو بریدونو کې ۸ فلسطینیان شهیدان شوي



د الجزیرې د راپور له مخې، اسرائیلي یرغلگرو یو ځل بیا د غزې پر بېلابېلو سیمو بریدونه کړي ،چې له امله یې د یوې ماشومې په شمول لږ تر لږه ۸ فلسطینیان شهیدان شوي. د غزې د روغتیا وزارت وایي، چې د اسرائیلي یرغلگرو د بریدونو له پیل راهیسې ۴۸ زره او ۵۰۳ فلسطینیان شهیدان او ۱۱۱ زره او ۹۲۷ نور ټپیان شوي دي. د غزې د دولتي رسنیو مرکز بیا د شهیدانو شمېر له ۶۱ زره او ۷۰۰ ډېر اټکل کړی او ویلي یې دي: داسې انگېرل کېږي،چې...۷مخ

## د څه باندې ۷ میلیونو ډالرو په ارزښت هوکړهلیکونه لاسلیک شول



دکډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت کې د ډنمارک د کډوالو تولنې "جي‌آر ایس" د افغانستان د کلیو د بیارغونې له ادارې سره د ۷ میلیونه ۳ سوه ۸۵ زره او ۸۵۰ امریکایي ډالرو په ارزښت څلور هوکړه لیکونه لاسلیک شول. یاد وزارت وایي، چې دغه ټولنه به د دې تړون له مخې په کابل، هرات، فراه، ننگرهار، نورستان او کونړ ولایتونو کې د نغدي پیسو په وېش، د سرپناه د ساتنې او ښه والي، د لمریزې برښنا د وسایلو کڅوړو، ظرفیت جوړونې او د فني او حرفوي زده کړو په برخو کې لگوي. د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت...۷مخ

### پروان کې د یوه سړک د جوړولو چارې پیل شوې

د پروان ولایت د سیاگرد ولسوالۍ په تیخان سیمه کې د یو میلیون افغانیو په لگښت د یوه سړک د جوړولو چارې پیل شوې دي. سرچینې باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي چې دغه سړک د سیاگرد ولسوالۍ اړوند تیخان سیمه کې د ځایي خلکو په مالي ملاتړ د یو میلیون افغانیو په لگښت جوړېږي، چې یو کیلو متره اوږدوالي او ۵ متره سور لري. ..۷مخ

## یو شمېر ولایتونو کې زرگونه کیلو گرامه له وخته تېر توکي راټول شوي



د امر بالمعروف، نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت وایي: د دې وزارت د محتسبینو او د ځایي مسئولینو په همغږۍ د رمضان المبارک میاشتې په مناسبت، په سوداگریزو مارکیټونو، هټیو او بازارونو کې د سود، احتکار، قیمت پلورنې څخه د مخنیوي او له وخته تېرو توکو د راټولولو د کمپاین په دوام د هېواد په گڼ شمېر ولایتونو کې له مارکیټونو او هټیو څخه د څارنې پر مهال زرگونه کیلو گرامه له وخته تېر توکي یې راټول کړي دي. همدارازیاد وزارت ...۷مخ

## د ننگرهار د کرنې ریاست څه باندې ۷۸ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي



د ننگرهار د کرنې، اوبو لگولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې د۱۴۰۳ مالي کال په اوږدو کې یې ۸۷ میلیونه ۱۵۸ زره ۸۷۹ افغانۍ عواید راټول کړي او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي.

د یاد ریاست رئیس، مولوي محمد ولي محسن د شفافیت او حساب ورکولو په رسنیزه ناسته کې وویل، چې یاد عواید د ځمکو اجارې، اراضۍ، ځنگلونو، مېوو، عشر او زکات له درکه ترلاسه شوي دي.

د نوموړي په وینا، له یادو عوایدو څخه ۳۶ میلیونه افغانۍ د ځمکو د اجارې او کرنیزو محصولاتو له درکه او ۵۱ میلیونه افغانۍ د مرکز او ۲۲ ولسوالیو له عشر او زکات څخه راټولې شوې دي. محسن زیاته کړه، چې د کرنې ریاست د عوایدو راټولولو پروسه د عدالت او شفافیت پر بنسټ پر مخ وړل کېږي، او دوی ژمن دي، چې بزگرانو او مالدارانو ته لازمې اسانتیاوې برابرې کړي.

ده وویل، چې د کرنې ریاست د عوایدو موخه د هېواد اقتصادي ثبات، د کرنیزو محصولاتو ارزښت لوړول، د کرنیزو خدمتونو پراختیا او ځان بسیاینې ته زمینه برابرول دي. د کرنې ریاست مسئولین ټینگار کوي، چې یاد عواید به د کرنیزو خدماتو د پراختیا، اقتصادي ودې او د کروندگرو د ژوند د ښه والي لپاره وکارول شي.

### اعلان وزارت اطلاعات و فرهنگ

وزارت اطلاعات و فرهنگ به تعداد (۱٦۰) قلم داغمه جات خویش را به تاریخ ۱٤۰۳/۱۲/۲۸ در محضر هیئت ذیربط با تنزیل ده فیصد لیلام مینمایند اشخاص موسسات شرکت های داخلی و خصوصی که خواهش خریداری آن را داشته باشند در خواستی شان را بریاست محترم مالی و اداری مدیریت عمومی محاسبه اجناس این وزارت در چهارراهی ملک اصغر مقابل وزارت امور خارجه، تعمیر اسبق وزارت دولت در امور پارلمانی بسپارید مشخصات وسایط را ملاحظه کرده پانزده فیصد تضمین طور پیش پرداخت اخذ میگردد.